بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

نوی خواږهٔ نعتونه

# دَزړهٔ سکون

## (بښکلی نعتونه)

لیکونکے

احمدعلی مردانی

(فاضل جامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوری ټاون کراچی

وایم اے عربی عبدالولی خان یونیورسټی مردان)

استاد گورنمنټ پرائمری سکول لیبر کالونی مردان

خورونکے

اسلامی ادبی ټولنه

یونیورسټی روډ مردان 0312-9818511

## هرچاته ئې دَ چهاپ کُولو اجازت دے


| | |
|---|---|
| دَ کتاب نوم | دَزړهٔ سکون (نعتونه) |
| صفحات | 248 |
| مصنف | مولانا احمدعلی مردانی |
| نظرثانی | جناب مهراندیش صیب |
| کتابت | النور کمپوزنگ سنټر |
| پبلشرز | مکتبه عشره مبشرهٔ لاهور |
| دَ چهاپ کال | مارچ 2017ء |
| بیعه | 300روپۍ |
| دَ ملاویدلو درک | 0312-9818511 |


## دَ میلاویدلو درکونه

★علی اینډ سنز کلاته هاؤس ګجوخان مردان

★ دَ ادبی دوستانو مرکه مردان

★ جامعه احیاء العلوم نسته روډ مردان

★ مدرسه اصحابِ صفهٔؓ مردان

★ دَ مردان په هره غټه کتب خانه کښې

میلاویدے شی .

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحيم

# دَ مصنف خبرے

الحمد للّٰه رب العٰلمين والصلوة والسلام على رسوله الكريم وعلىٰ اٰله واصحابه اجمعين ومن تبعهم باحسان الىٰ يوم الدين . اما بعد! دا خبره لکه دَورځ پشان واضحه ده چې په مخلوقات کښې دَ خالقِ کائنات (دَ اللّٰه تعالىٰ) نه وروستو دَ ټولو نه زيات ذکر دَ شفيع المذنبين خاتم النبيين امام المرسلين سيد الاولين والاخرين حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ په مخ دَ مزکه کيږی .چاچې په دُنيا کښې کلمه ويئلے ده هغه په کلمه کښې دَ اللّٰه تعالىٰ دَ ذکر نه پس دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ ذکر کوی .دغه شان څوك چې په دُنيا کښې اٰذان کوی نو مؤذن هم په دغه اٰذان کښې دَ اللّٰه تعالىٰ دَ ذکر سره دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ذکر کوی .دغه رنګ په مونځ کښې دَ خالقِ کائنات دَ ذکر سره دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ ذکر راغلے دے .دَ اللّٰه تعالىٰ په کلام کښې هم په مختلفو مقاماتو کښې دَ اللّٰه تعالىٰ د ذکر سره دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ ذکر موجود دے .دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ سره مينه او

دَ هغوی ذکر کول عین عبادت دے یعنی اصل عبادت هم دغه مینه او ذکر دے. دغه ذکر یا نظم او نثر دواړو شکلو کښې موجود دے .ادیبانو په نثر کښې دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ صفات بیان کړی دی او شاعرانو په شعرونو کښې دَ نبی کریم ﷺ مدح وصفت بیان کړے دے.دغه مدح وصفت ته په عربی ژبه کښې نعت وئیلے شی . یعنی دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ تعریف وتوصیف بیانوولو ته دَ اهل شریعت په اصطلاح کښې نعت وئیلے شی. دَ لفظ نعت په دے معنیٰ کښې اولنے استعمال په عربی ژبه کښې شوے وو بیا دَ عربی ژبے نه فارسی پنجابی اُردو پښتو او دغه رنګ نورو ژبو ته دا لفظ په دے معنی منتقل کړے شو . او نن هم په دغه معنیٰ باندې استعمال لیږی. نعتِ مصطفیٰ ﷺ لیکل او بیانوُل دا طریقه دَ صحابهؓ ده . دغه شان دا طریقه دَ نیکانو صالحانو اولیاء اللّٰه ده. په اصحابِ رسولؓ کښې په نعت خوانی سره یاد نوم دَ حضرت حسان بن ثابتؓ دے چې ورته شاعر رسول ﷺ لقب هم ورکړے شوے وو . دوی به بهترین انداز سره دَ شعرونو په ذریعه دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ مدح وصفت بیانوو. نعت لیکل او وئیل ډیر لوئے عبادت دے دَ دُنیا او دَ آخرَت سعادت یو ذریعه

ده.په اٰخرت کښې دَنجات يو لوئے سبب دے او په دُنيا کښې دَ برکتونو او رحمتونو باعث دے. دَنبی کريم ﷺ مدح ثنا که بلا واسطه وی نو هم عبادت دے او ډير دَ اجرعظيم سبب دے او که دا مدح وثنا بالواسطه وی نو هم دَ خير او اجر کامل نه خالي نه دے.په دې دواړو صورتو نو کښې په نعت خوانی شريعت کښې په دے ډير لوئے اجر مقرر کړے دے.

ما هم په دغې نيت دا مختصره مجموعه ليکلے ده چې اللّٰه تعالیٰ ئې ماله باعث دَشفاعتِ محمد رسول اللّٰه ﷺ وګرځوی .او دَ اٰخرت په هريو منزل ئې مادَ پاره نُور دَ اٰخرت او سبب دَنجات کامل اُګرځوی.

وصلی اللّٰه تعالیٰ علی خير خلقه محمد واٰله واصحابه اجمعين ومن تبعهم باحسان الیٰ يوم الدين .

دَ دُعا او دَ شفاعت طلبګار


## (ابو القاسم) احمدعلی مردانی

### (فاضل جامعة العلوم الاسلاميه

علامه محمد يوسف بنورئ ټاؤن کراچی

و ايم اے عربی عبدالولی خان يونيورسټی مردان)

استاد ګورنمنټ پرائمری سکول ليبرکالونی مردان

# بسم اللّٰه الرحمٰن الرحيم

## حمد باری تعالیٰ

تـــــهٔ دَهــــر نـــور دَ هــــر آفتــــاب مــــالك ئـــي
دَ هـــــريـــــو درد دَ هـــــر دريــــاب مــــالك ئــــي
انســــانـــــان تـہــول دي ستـــــا دَ در غـــــلامــــان
دَ هــــر انســـــان دَ هــــريـــــو بــــاب مــــالك ئــــي
تـہــول مـــلائـــكـــــه ستـــــا د در مـــحتــــاج دي
دَ كـــــائـــنــــات دَ بنــــــهٔ خــــراب مـــــالك ئــــي
تــــورات زبـــور انـــجيـــل قـــرآن دغــــــه تـہــول
دَ انبيـــــــاء دَ هــــر كتــــــاب مـــــالك ئــــــي
جــــنـــــــت دوزخ تـــــــا پيـــــدا كـــــړي دواړه
دَهـــــــر عــــــذاب او دَ ثـــــواب مــــــالك ئـــــــي
ميــــــزان دَ عــــدل قـــــائـــــم كـــــړے تـــــا دے
دَ كـــــائـــنــــات دَهـــــر حســـــاب مــــالك ئــــي
غـــرونـــــه دا لـــوئـــي لـــوئـــي آسـمـــانـــونـــه بـــره
رڼــــا دَ ستــــــورو دَ مهتـــــاب مـــــالك ئـــــي
تــــــهٔ دَ احـــمـــد مــــالك ئـــــي حـــق وايـــمـــــه
دَ هــــــرســـــوال دَ هــــــرجــــواب مــــــالك ئــــــي

# حمد باری تعالیٰ

دَ هر صحرا دَ هر میدان مالک ئې

بره دَ هر یو لوئې اسمان مالک ئې

داوُنې بوټې پیدا کړی تا دی

دَ دریابونو دَجهان مالک ئې

ښائستهٔ قمر سره ټول ستوری ستادی

دَ هر ځنګل او بیابان مالک ئې

بره دَ عرش او دَ کرسی سره تهٔ

دَ هر مکان او لامکان مالک ئې

دَ هر یو غنې دَجهان دلته کښې

دَ هر یو ګل دَ ګلستان مالک ئې

دَ هر عالم او دَ جاهل دَ در

دَ هر غریب سره دَ خان مالک ئې

ګرمے یخنے سره دَ دواړو دلته

دَ هر سپرلی او دَ خزان مالک ئې

دَ هر یو ساه تهٔ ئی مالک دَجهان

دَهر یو ګټے او تاوان مالک ئې

دَ احمد لاس کښې کهٔ قلم دلته دے

ددې قلم دَ دې بیان مالک ئې

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښوك چې دُنيا کښې محمد خير البشر ﷺ ووينې
داسې ده دلته چې دُنيا کښې ښائسته نمر ووينې
ښوك چې صورت دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ووينې
ښوك چې صورت دَ محمد نُورالهُدیٰ ﷺ ووينې
داسې ده دلته چې روښانه ښوك قمر ووينې
ښوك چې ښاغونه دَ نبيانو دَ امام ووينې
ښوك چې غاښونه دغه دلته کښې تمام ووينې
داسې ده دلته چې لعلونه او ګوهر ووينې
ښوك چې ظهور دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ووينې
ښوك چې تول نُور دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ووينې
داسې ده دلته چې په شپے پسے سحر ووينې
ښوك چې انوار دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ووينې
ښوك چې دربار دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ووينې
داسې ده دلته چې رښا ښوك دَ نظر ووينې
ښوك په نظر چې محمد خير الانام ﷺ ووينې
احمده ! ښوك چې په دُنيا دا لوئي مقام ووينې
داسې ده دلته چې ګلاب ښوك معطّر ووينې

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك چي په خپلو سترګو دلته پیغمبر ﷺ ووینی
لکه یخ والے چي دَ سترګو دَ نظر ووینی
څوك په دُنیا چي دَ نبیانو تاجدار ﷺ ووینی
څوك په دُنیا چي محمد خیر الابرار ﷺ ووینی
داسي ده دلته چي روښانه بره نمر ووینی
څوك چي په خپلو سترګو ووینی تاجدار دَ جهان
څوك چي په خپلو سترګو ووینی غمخوار دَ جهان
دَ دلبرانو په دُنیا کښي به دلبر ووینی
څوك چي په خپلو سترګو ووینی امین دَ جهان
څوك چي په خپلو سترګو ووینی یٰسین دَجهان
داسي ګنړه چي مجسمه څوك اختر ووینی
څوك چي په خپلو سترګو ووینی رحمت دَجهان
څوك چي په خپلو سترګو ووینی مشفق مهربان
ګنړه ئي دلته دَ جهان چي څوك افسر ووینی
څوك چي په خپلو سترګو ووینی محبوب دَ رب
څوك چي په خپلو سترګو ووینی مطلوب دَ رب
داسي ګنړه چي څوك دُنیا کښي تاج دَ سر ووینی
څوك چي په خپلو سترګو ووینی احمده ! نبی ﷺ
څوك چي په خپلو سترګو ووینی رسول مدنی ﷺ

ښـــادر دَ حُســـن دښُـــکـــلا بـــه دَ هـــر درووېـــنـــي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

درود زړۀ نـــه داغــونـــه دَ نــفـــرت لـــرے کـــوی
دَ زړۀ نـــه دَ دُنيـــا دَ درظـــلـــمـــت لـــرے کـــوی
پـــه دې ســـره پـــاکيـــزې دغـــه زړونـــه دَجهـــان
پـــه دې تـــول آبـــاديـــږی دا کـــورونـــه دَجهـــان
دُنيـــا کښـــی هـــريـــو کـورنـــه شـرارت لـــرے کـــوی
دَ زړۀ نـــه دَ دُنيـــا دَ درظـــلـــمـــت لـــرے کـــوی
پـــه دې ســـره ختـــميـــږی دا تـــورتـــم دَکـــائـــنـــات
پـــه دې ســـره ختـــميـــږی هـــريـــوغـــم دَ کـــائـــنـــات
دُنيـــا دَ هـــريـــو درنـــه هـــم لـــعـــنـــت لـــرے کـــوی
دَ زړۀ نـــه دَ دُنيـــا دَ درظـــلـــمـــت لـــرے کـــوی
پـــه دے ســـره جـــوړيـــږی هـــريـــو کـــاردلتـــه اســـان
پـــه دے ســـره لـــرکيـــږی هـــر اثـــر دَ هـــر شيـــطـــان
دُنيـــا کښـــي دَ هـــر درنـــه ضـــلالـــت لـــرے کـــوی
دَ زړۀ نـــه دَ دُنيـــا دَ درظـــلـــمـــت لـــرے کـــوی
هـــر درپـــه دے آبـــاد دے اے احـــمـــده! دَجهـــان
درود ســـره ښـــائستـــه دے دَ دُنيـــا دَ درانســـان
تيـــرے دَ کـــائـــنـــات نـــه دَ بـــدعـــت لـــرے کـــوی
دَ زړۀ نـــه دَ دُنيـــا دَ درظـــلـــمـــت لـــرے کـــوی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

درود سره دُنیا کښې هر یو در دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود دی رڼا ګانې دَ دُنیا ددغې در

درود ی رڼا ګانې په هر خوا ددغې در

قسم دے په دے دلته هر نظر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود کښې سکون پروت دے په دُنیا کښې دَهر کور

درود کښې سکون پروت دے دَ محشر او هم دَګور

قسم دے په درود هر یو رهبر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود کښې رحمتونه دَ مولیٰ غنی سبحان دی

دَ رحم بارانونه دَ مولیٰ غنی سبحان دی

هر باغ دَ کائنات ئي په اثر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود کښې مینه پټه دَ مولیٰ غنی سبحان ده

درود کښې مینه پټه دَ نبی اٰخرزمان ﷺ ده

درود سره دُنیا کښې بره نمر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود کښې پټ پراته دی دَ مولی تول جنتونه

درود کښې پټ پراته دي دَرسول الله ﷺ یادونه

درود سره دَ هریو درسحر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود سره ټول ستوري ښائسته شوي دَ اسمان دي

درود سره ګلونه ټول ښائسته دَ ګلستان دي

په دے سره هر تاج دَ هریو سر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

درود سره ترلے ده رب ښُکلا دَ هر چمن

احمد علی درود کښې ده ښُکلا دَ هر وطن

درود سره دُنیا کښې پاس قمر دے ښائسته شوے

درود سره دُنیا کښې هر بشر دے ښائسته شوے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

درود زړهٔ نه اثر دَ هر شیطان لرے کوي

کینه حسد دَ زړهٔ نه دَ انسان لرے کوي

داغونه دَ ګناه دَ زړهٔ ختميږي دَ انسان

دا زړونه صفا کیږي په دُنیا کښې دغه شان

داغونه دَ هر زړهٔ نه دغه شان لرے کوي

درود زړهٔ نه اثر دَ هر شیطان لرے کوي

ظلمت دَ هر بدعت په دې لرکیږي دَ جهان

ظلمت دَ ضلالت په دې لرکیږي دَ جهان

دُنیا نه دَ دُنیا دَ درخزان لرې کوي
درود زړۀ نه اثر دَ هر شیطان لرې کوي
ماحول دلته دُنیا کښې دَ نفرت ختموي دا
ماحول ددې دُنیا دَ عداوت ختموي دا
دُنیا کښې دَ دُنیا نه هر هامان لرې کوي
درود زړۀ نه اثر دَ هر شیطان لرې کوي
علاج دَ هر بیمار دې اې احمده ! دَ جهان
علاج دَ هر یو درد دې دا علاج دې دَ مردان
دُنیا کښې دَ هر درنه ګمراهان لرې کوي
درود زړۀ نه اثر دَ هر شیطان لرې کوي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په مدینه کښې مې جانان وُسیږي
زما نبي آخر زمان ﷺ وُسیږي
هلته کورونه دَ رڼا نه جوړ دي
هلته کورونه دوفا نه جوړ دي
نوراني نور دَ هر مکان وُسیږي
هلته ښُکلا دَ هر یو در پرته ده
هلته ښُکلا دَ پیغمبر ﷺ پرته ده
دوست دَ الله غني سبحان وُسیږي
هلته رحمت په هر یو چهت وریږي

هلته رحمت دَ پاك حضرت ﷺ وربږي
هلته ښکلا دَ ګلستان وُسيږي
هلته محبوب دَ عالمانو وُسي
محبوب احمده! دَ نيکانو وُسي
دَ هريو در هلته سلطان وُسيږي

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

دَ زړۀ په کور کښي مي طٰهٰ ﷺ وُسيږي
نوراني نور دي دُنيا وُسيږي
ځکۀ په زړۀ کښي مي غمونه نشته
ځکۀ دَ زړۀ مي فريادونه نشته
راسره کور کښي مصطفىٰ ﷺ وُسيږي
نوراني نور دي دُنيا وُسيږي
ځکۀ مي زړۀ په اطمينان سره دے
ښۀ مطمئنه هر بيان سره دے
محبوب مي کور کښي دَمولىٰ وُسيږي
نوراني نور دي دُنيا وُسيږي
ځکۀ خوشحاله په هر در بانديٍ دے
ياد شوي کور ښۀ په بهتر بانديٍ دے
دَ دُنيا ټولے مقتدا وُسيږي
نوراني نور دي دُنيا وُسيږي

دَهـر نـعـمـت نـه لـوئـے نـعـمـت دے دلتـه

دَ هـر عـزت نـه لـوئـے عـزت دے دلتـه

زړۀ کښـې دنـنـه چـې زمـا وُسـيـرى

نـورانـى نـوردې دُنـيـا وُسـيـږى

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ملـګـرې چې دَ چـا نورانى نمر مدنى ﷺ شو

رهبر شـو پـه دُنـيـا چـې ئې رهبر مدنى ﷺ شو

رهـبـر شـو پـه دُنيا کښـې دَ دُنيا دَ رهبـرانـو

رهبر شـو پـه دُنيـا کښـې دَ نيـکـانـو صـالـحـانو

دَ چـاسـره ملـګـرې چـې افسر مدنـى شـو

رهبر شـو پـه دُنـيـا چـې ئې رهبر مدنى ﷺ شو

رهـبـر دَ خـلائـق شـو پـه دُنـيـا کښـې دَ دُنيـا

رهـبـر دَ خـلائـق شو پـه دُنيـا کښـې پـه هـر خوا

مـحبوب چـې پـه دُنـيـا دَ چـا دلبر مدنـى شو

رهبر شـو پـه دُنـيـا چـې ئې رهبر مدنى ﷺ شو

رهـبـر دَ هـر دانـا شـو پـه دُنيـا کښـې هـر سـاعـت

دُنـيـا دَ پـاره جـوړ شـولـو يـو سـپـورې دَ رحمـت

دلـبـر چـې پـه دُنـيـا ئې پـيـغـمبر مدنى ﷺ شو

رهبر شـو پـه دُنـيـا چـې ئې رهبر مدنى ﷺ شو

رهبر شـو پـه دُنيا کښې هغـه هر ځائے کښې تمام

عالی په کائنات ئې دَ دُنیا شولو مقام
احمد علی ! دَ چا چې دَ زړهٔ سر مدنی ﷺ شو
رهبر شو په دُنیا چې ئې رهبر مدنی ﷺ شو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پاك رسول اللّٰه ﷺ زمونږه نُور كامل په ذات دے
دا مې عقیده ده چې بهتر له مخلوقات دے
دا مې عقیده ده چې بهتر هغه هرچا نه دے
دا مې عقیده ده چې بهتر له انبیاء نه دے
سیّدالوریٰ ﷺ زمونږ جامع دَ کمالات دے
دا مې عقیده ده چې بهتر له مخلوقات دے
دا مې عقیده ده هم خاتم دَ مُرسلانو دے
دا مې عقیده ده هم محبوب دَ صالحانو دے
خورم قسم دُنیا کښې مجموعه دَ ټول صفات دے
دا مې عقیده ده چې بهتر له مخلوقات دے
دا مې عقیده ده نُور دے نور بشر منوَر ﷺ هغه
دا مې عقیده ده چې دے سیّد البشر ﷺ هغه
خورم قسم دُنیا کښې لاثانی په عبادات دے
دا مې عقیده ده چې بهتر له مخلوقات دے
دا مې عقیده ده اولین دے دَ دُنیا نبی ﷺ
دا مې عقیده ده آخرین دے دَ دُنیا نبی ﷺ

دغـــه شـــان بـــاعـــث دَ کـــائنـــات دَ بـــرکـــات دے
دا مـــې عـــقـیـــده ده چـــې بهتـــر لـــه مخلوقـــات دے
دا مـــې عـــقـیـــده ده چـــې شـــافـع دَ مذنبینـــو ﷺ دے
دا مـــې عـــقـیـــده ده چـــې امام دَ صـالحینـو ﷺ دے
وائـــی احـــمـــد وائـــی ښـــۀ کـامـل پـــه بیـانـات دے
دا مـــې عـــقـیـــده ده چـــې بهتـــر لـــه مخلوقـــات دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـــول مـــنـــی دا تـــول چـــې رب زمـــونـــږه یـــو اللّٰـــه دے
جـــنـــګ زمـــونـــږ اغـیـار سره پـه سیَدالـوریٰ ﷺ دے
زۀ مـــنـــم چـــې نـــور دے نـورانـــی هـغـــه بشـــر مـنـم
زۀ ئـــې کـــائنـــات کـښـــې آخـــری هـم پیـغمبر ﷺ منم
دا بیـــان دُنیـــا کـښـــې دَ نیـــکـــانـــو عـلـمـاء دے
تـــول مـــنـــی دا تـــول چـــې رب زمـــونـــږه یـــو اللّٰـــه دے
جـــنـــګ زمـــونـــږ اغـیـار سره پـه سیَدالـوریٰ ﷺ دے
زۀ پـــه کـــائنـــات کـښـې دَ رسـول ﷺ هریو صفت منم
دا رنګ پـه محشر کـښـې ئـې تاجدار دَ شفاعت ﷺ منم
ښـــۀ واضـــحـــه ذکـــر دغـــه کـــړے اولیـــاء دے
تـــول مـــنـــی دا تـــول چـــې رب زمـــونـــږه یـــو اللّٰـــه دے
جـــنـــګ زمـــونـــږ اغـیـار سره پـه سیَدالـوریٰ ﷺ دے
زۀ ئـــې پـــه دُنیـــا کـښـې تـول روښـانـه شـریعـت مـنـم

زهٔ ئـي دَ هـر لارے رہـا دلتـه کښې سنـت منم
دا بیـان لیـکـلـے امـامـانـو ښـهٔ صـفـا دے
تـول مـنـی دا تہول چې رب زمـونـږه یـو اللّٰـه دے
جـنګ زمـونـږ اغیار سره په سیَدالوریٰ ﷺ دے
زهٔ ئـي کـائـنـات کښې لـکـه نمر پشان رہا منم
زهٔ ئـي دَ دُنیـا دَ در روښـانـه مـقـتـدا مـنـم
اے احـمـده ! دا بیـان هم دلتـه کښې نن ستا دے
تـول مـنـی دا تہول چې رب زمـونـږه یـو اللّٰـه دے
جـنګ زمـونـږ اغیار سره په سیَدالوریٰ ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اقـتـدا کښـي دَ طـٰه ﷺ ده کـامیـابی
دغـه ستـا ده هـم زمـا ده کـامیـابی
هـم صـدیـقؓ ئـي مـقـتـدی ددې جهـان دے
خیـرسـري دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ ده کـامیـابی
دَ عـمـرؓ عـدل ددغـي در پـه لار دے
راشـه دلتـه دَ هـر چـا ده کـامیـابی
دَ عثـمـانؓ سـخـاوت ښـور ددغـي در دے
پټـه دلتـه پـه ربښتیـا ده کـامیـابی
دَ حـضـرت عـلـيؓ عـظـمـت ددغـي در دے
ښـهٔ واضـحـه دا صـفـا ده کـامیـابی

عــلامــت دَ هــر فــلاح دے پــه جهـان
دَ آخــر او دَ دُنیــا ده کـــامیــابــی
اے احمــد علــی ! ځـکــه دَ فلاح ځـائے دے
ایــخــی دلتــه ربَ مــولــیٰ ده کــامیــابــی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

میـنــه رسـول ﷺ سـره زیـاتیـږی پـه درود بـاندي
دَ ربَ رضــا هــم مــلاویــږی پــه درود بــانــدي
هــریــو کـار دلتـه کـۀ وی وران دَ دي دُنیـا دَ در
کــارونــه دغــه تـول سـمیـږی پـه درود بـانـدي
دَ لـوئـی ثـواب ده ذریعـه پـه دي دُنیـا کښی دلتـه
ګـنـاه دَ هــر بشـر رژیـږی پــه درود بــانـدي
دُعــا درود سـره چـي یَو شـی قیمتـی جوړه شـی
ځـکــه هــریــو دُعــا قبـلیـږی پـه درود بـانـدي
خیـر ددُنیا پکښي تول پروت دے څوك چي دلته وائی
زنګ دَ هــر زړۀ نــه لــرے کیــږی پــه درود بـانـدي
کـامیـاب بـه نشـی چی څوك نۀ وائی درود په ژبـه
احـمـده ! خــلـق وُچتیــږی پــه درود بــانـدي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راځــے چـي وُکـړو دَ نبـی ﷺ دَ شـفـاعـت خبـرے
راځــے چـي وکــړو دَ نبــی دَ رســالــت خبـرے

راځــے چــې وکــړو تــذکــره دَ پــاك رسول ﷺ دَ در
ددغــی در دلتــه چــې وکــړو دَ عــظــمــت خبــرے
راځــے وُکــړو تــذکــره دَ مــحــمــد ﷺ دَ اصحــابؓ
راځــے چــې وُکــړو ددې در دَ لــوئــے نسبت خبرے
راځــے چــې وکــړو تــذکــره دَ مــصــطــفیٰ ﷺ دَ ال
ددغــې در راشــے چــې وکــړو دا ســاعــت خبــرے
راشــی چــې وکــړو تذکره دَ پاك رسول ﷺ دَ جمال
ورســره وُکــړو دَ رســول ﷺ دَ مــحبــت خبــرے
راشــی چــې وکــړو دَ اخــلاقــو تــذکــره دَ نبــی ﷺ
ورســره وُکــړو دَ رســول دَ عبــادت ﷺ خبــرے
تــذکــره راشــے دَ امیــن دَ امــانــت چــې وُکــړو
ورســره وُکــړوئــې دا رنګ دَ صــداقــت خبــرے
تــذکــره وُکــړو دَ وفــا دَ هــاشــمــی ﷺ ورســره
ورســره وُکــړو دَ نبــی ﷺ دَ ســخــاوت خبــرے
احــمــده! ذکــر دَ نبــی ﷺ دَ هــر صــفــت کوۀ تــۀ
کــوۀ دُنیــا کښــې دَ نبــی ﷺ دَ نُور سنت خبــرے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خــلائــق کښــې بهتــریــن جــانــان زمــا دے
رحــمة لــلــعٰــلــمیــن ﷺ جــانــان زمــا دے
پــه مــخلــوق کښــې بــه بــل داسے پیدا نشــی

لکه څنګه چې حسين جانان زما دے
لامکان ته بره تلے دَ جهان دے
دا محبوب دَربّ متين جانان زما دے
سپوږمے دلته په دُنيا دَهر يشر دے
قدرمنده دا ٰيسين جانان زما دے
مرتبه ئي ده اُوچته له هر چا نه
په لقب دا اولين جانان زما دے
دَنبيانو په آخر کښې دے راغلے
مُلقب په آخرين جانان زما دے
تاج په سر دَامامت لري دُنيا کښې
دا امام المرسلين ﷺ جانان زما دے
نبوت په دُوي سره دے تمام شوے
دا خاتم النبيين ﷺ جانان زما دے
زۀ به ولے فخر نۀ کوُوم په دوي تل
له هر چا نه بهترين جانان زما دے
په رښتيا باندي ګويائي تول عالم دے
اے احمده! دا امين جانان زما دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رهبرانو له رهبر ﷺ جانان زما دے
دَنبيانو دا افسر ﷺ جانان زما دے

نمر ئي حُسن نه شرمیږي دَ جهان
دا حسین ښائسته بشر جانان زما دے
دَ اللّٰه دیدن له تللے لامکان ته
دَ هر چا دَ زړګی سر جانان زما دے
دَ معراج په شپه امام دَ انبیاءوو
دا حسین ښائسته قمر جانان زما دے
هر طرف ئي دَ دُنیا په نُور رڼا دے
نوراني ټول منوّر جانان زما دے
دَ رحمت سیورے ئي ښور په ټول جهان دے
دَ هر چا نُور دَ نظر جانان زما دے
په نسبت سره عالي ئي هریو خیز دے
بهترین دَ بحر و بر جانان زما دے
مجموعه دَ صفتونو چي یادیږي
دا احمده! پیغمبر ﷺ جانان زما دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اے په دُنیا کښې آخري دَ مُرسلانو نبي ﷺ
تانه قربان تانه قربان دَ امامانو نبي ﷺ
تانه قربان هر ګلستان هریو ښکلا دَ چمن
تانه قربان بره آسمان هریو رڼا دَ وطن
اے دَ دُنیا دَ در دُنیا کښې دَ ولیانو نبي ﷺ

تانه قربان تانه قربان دَ اماماانو نبی ﷺ
تانه قربان هريو نعمت ددې دُنيا دَ در
تانه قربان هريو عظمت ددې دُنيا دَ در
اے قدرمنده، عزتمنده دَ نيکانو نبی ﷺ
تانه قربان تانه قربان دَ اماماانو نبی ﷺ
تانه قربان ګلونه ټول ددې جهان دَ در
تانه قربان لعلونه ټول ددې جهان دَ در
طٰهٰ يٰسينه اے صادق دَ صادقانو نبی ﷺ
تانه قربان تانه قربان دَ اماماانو نبی ﷺ
ستوري قربان درنه ښائسته ددې جهان بره ټول
څيزونه ټول درنه قربان دَ لامکان بره ټول
عالی رهبره مقتدا دَ رهبرانو نبی ﷺ
تانه قربان تانه قربان دَ اماماانو نبی ﷺ
احمد قربان درنه دُنيا کښې هرساعت په جهان
درنه قربان درنه قربان هريو مکان لامکان
رڼا دُنيا کښې دَ هردر دَ عالمانو نبی ﷺ
تانه قربان تانه قربان دَ اماماانو نبی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

طريقه چې دَ طٰهٰ ﷺ نه وی په کښې
خير به چرے په دُنيا نه وی په کښې

هـــریـــو کـــاردلتــــه کـبـنــي تـلـــه پـــه سـنـــت
نـقـصـــان تـول دے چـي کـــاردا نـــۀ وي پـــه کـبـنـي
دیـــن دے هـلـــــه چـــي وي خـــوښــــه دَ نبـــي ﷺ
بـــي لـــه دے نـــه بـــه ښـُـکـلا نـــۀ وي پـــه کـبـنـي
خیـــر دے خیـــر چـــي دَ نبـــي ﷺ پـــه طـریقـــه وي
نـــه دے خیـــر چـــي دا رنـــا نـــه وي پـــه کـبـنـي
ورتــــه هیـڅ څـــوك دَ خیـــر کـــار نـــۀ شـــي وئیـلـے
چـــي دَ پـــاك رســـول ﷺ ادا نـــۀ وي پـــه کـبـنـي
کـــار اُنـــکـــړے اے احـمـده ! پـــه دُنیـــا کـبـنـي
چـــي دَ پـــاك رســـول ﷺ رضـــا نـــۀ وي پـــه کـبـنـي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زړۀ کـبـنـــي میـنــــه دَ طـــٰه ﷺ نـــه وي چـــي کـلـــه
ایـمـــان نشـتـــه ئـــي هـم دا نـــۀ وي چـــي کـلـــه
پـــه شیـطــــان پسـے روان بـــۀ پـــه دُنیـــا وي
لار دَ سیّـــدالـــوریٰ ﷺ نـــــۀ وي کـــلـــــه
تـــور بـــه زړۀ ئـي پـــه دُنیـــا کـبـنــي هـر ســاعـت وي
زړۀ کـبـنـي نُـــور دَ مـصـطـفیٰ ﷺ نـــه وي چـي کـلـه
نـــۀ دَ بـــل ســـاتـــی پـــروا نـــۀ دَ خپـــل ځـــان
شـــرم ستـــرګـــو کـبـنـــي حیـــا نـــه وي چـــي کـلـــه
هـــمیـشــــه بـــه وي دُنیـــا کـبـنـي پـــه تـکـــرو

لاړ دَ عــدل دَ ربنتیــا نـــه وی چـــي کـلـــه
دغـــه پـــریــږده پـــه دُنیــا کښـــي تـــاوانـــی ده
لاړ احـــمـــد ه ! دَ وفـــا نـــه وی چـــي کــلـــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پـــه مـکـــه کښـــي چـــي ددیـن شـمـع شوه بلـه
پـــه ژړا بـــانـــدي شیـــطـــان شـــو بدعـمـلـــه
هـــرطـــرف تـــه دَ دُنیـــا رڼـــا شـــوه
دَ دُنیـــا تـــولـــه فـــضـــا شـــولـــه بـدلـــه
دَ هـــر کـــور دَ پـــاســـه سیـــورے دَ رحـــمـــت شـــو
هـریـو کـــور شــولـــو مـحـفـوظ لـــه شیطـان غلـه
تیـــرے خـتـمـــے دَ دُنیـــا دَ ګـمـــراهـــے شـــوے
سپـــوږمـــی کـلـــه چـــي دَ دیـــن راوُختـلـــه
دَ بـدعـــت قیـــصـــه شـوه ختـمـــه پـــه دُنیا کښـــي
کـلـــه شـمـــع چـــي دا خـــلـــقـــو وُلیـــدلـــه
تـــویـــه ګـــارلـــه هـریـوشـرکـــه شـــو احـمـده !
خبـــردار شـــو چـــي انســـان لـــه خپـل مـنـــزلـــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـــهٔ اوَلیـــن ئـــي تـــهٔ آخـــریـــن ئـــي
دَ هـــر بهتـــر نـــه تـــهٔ بهتـــریـــن ئـــي
جـــمـــال دے ډیـــر دے

کمال دے ډیر دے

امام دَ هر چا دَ مرسلین ئي

دَ هر بهتر نه تۀ بهترین ئي

شمس الضحیٰ ﷺ ئي

عالی اعلیٰ ﷺ ئي

قسم دے ډیر زیات ښائسته حسین ﷺ ئي

دَ هر بهتر نه تۀ بهترین ئي

اُمت دے لوئے دے

رحمت دے لوئے دے

شافع محشر کښې دَ مذنبین ﷺ ئي

دَ هر بهتر نه تۀ بهترین ﷺ ئي

سنت دے خیر دے

صفت دے خیر دے

طهٰ یٰسین ئي، صادق امین ئي

دَ هر بهتر نه تۀ بهترین ئي

نُور رهنما ئي

نُور دَ هر چا ئي

احمد دَ پاره رهبر دَ دین ئي

دَ هر بهتر نه تۀ بهترین ئي

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راتــه یـاد شـوے چې ستــا کـور کـلـے وطـن دے
ګـران مـې ژونـدون ځـکـه پـه خپل کلی کښې نن دے
نـهٔ پـه ژړا بـانـدې صبـریـږی نـهٔ پـه بـل څـهٔ بـانـدې
راتــه یـاد شـوے ځـکـه ستـا ښـکـلـے چـمـن دے
ګـران مـې ژونـدون ځـکـه پـه خپل کلی کښې نن دے
نـه بـل عـلاج لـری دُنیـا کښې پـه دُنیـا بـانـدې دا
بــس یـو عـلاج ئـې پـه دُنیـا کښې ستـا دیـدن دے
ګـران مـې ژونـدون ځـکـه پـه خپل کلی کښې نن دے
راتـــه یـــادیـــږی رنـــګـــانـــې ستـــا ښُـــکـــلا د در
راتـه یـاد شـوے ستـا ښـائستـهٔ ښـکـلـے مدفن دے
ګـران مـې ژونـدون ځـکـه پـه خپل کلی کښې نن دے
راتــه یـاد شـوی دی ګـلـونـــه دَ مـحـفـل دی تـول
پـه کښې هـر ګـل ښـائسـت دُنیـا کښې دَ هر تن دے
ګـران مـې ژونـدون ځـکـه پـه خپل کلی کښې نن دے
ځـکـه مـا نـعـت دَ مـحـمـد رسـول الـلّـه ﷺ لیکلے
دغـــه ســـکـــون مـــې پـــه دُنیـــا دَ تـول بـدن دے
ګـران مـې ژونـدون ځـکـه پـه خپل کلی کښې نن دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راتـــه جـــانـــان دَ مـــدیـــنـــې مـــنـــورې یـــادیـــږی

راتــه ئـي دلتـه کښـي دَ کـور کلـي کـوڅـي يـاديږي

راتـــه يـــاديـــږي ئـــي انـــوار دَ مــديـنـــي دَ لارو

راتـــه يـــاديـــږي ئـــي آثـــار دَ مـديـنـــي دَ لارو

راتـــه دَ لارو ئـــي ښـائستـــۀ تـولـے ذرے يـاديږي

راتـــه جـــانـــان دَ مـــديـنـــي مـنـوري يـاديـــږي

راتـــه يـــاديـــږي ئـــي ګـفـتـــار دَ مـديـنـــي دَ در

راتـــه يـــاديـــږي ئـــي ګـلـــزار دَ مـديـنـــي دَ در

راتــه انــوار ئــي پــه دُنيـــا کښـي دَ روضـي يـاديـږي

راتـــه جـــانـــان دَ مـــديـنـــي مـنـوري يـاديـــږي

راتـــه هـــرګـل دَ مـــديـنـــي دَ ګـلستـــان يـاديـــږي

راتـــه ګـلـونـــه ددي در تـول عـــاليشـــان يـاديـــږي

راتـــه دَ نـــور جـــاري ددغـــي در چـيـنـي يـاديـــږي

راتـــه جـــانـــان دَ مـــديـنـــي مـنـوري يـاديـــږي

راتـــه ښُـکـلا دَ مـديـنـــي دَ تـاجـدار ﷺ يـاديـــږي

راتـــه وفـــا دَ مـــرسـلانـو دَ سـردار ﷺ يـاديـــږي

تـــاتـــه احـمـده ئـي دَ در تـولـي نـقـشـي يـاديـږي

راتـــه جـــانـــان دَ مـــديـنـــي مـنـوري يـاديـــږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ رحـــمـــت بـــاران وريـــږي مـــديـنـــه کښـــي

داســـے نشتـــه دَ دُنيـــا پـــه يـو حـصـــه کښـــي

دَ دُنیـــا دَ در ښـــائستـــــه یـو ګـلـدستــــه ده
داسـے نشتــــه دے ښُـکـلا یـو ګـلدستــه کښـي
پــــه کتــوئـي دغـــه ستـرګـے نشــه کیــږی
داسـے نشتــــه دے مستــي پــه یو نشــه کښـي
پـــــه خـــوشبـــو ئـــي مـــعـــطَـــره دا دُنیـــا ده
داسـے نشتــه دے خـوشبـو پــه یو روضـه کښـي
انـــوارت ددغــــي در نــــــه خـــوارۀ شـــوی
انـــوارات بـــه داسـے نـــۀ وی یـو چینـــه کښـي
رنګ پــــه رنګ دلتــــه ګـلـونــــه دی احـمـده !
هـریـو ګـل شتــه دَدُنیــا دغـــه حـصــه کښـي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مـدینـــي پشـــان بـل ښـار نشتــــه دُنیــا کښـي
مـدینـــي پشـــان ګـلــزار نشتـــه دُنیـــاکښـــي
تــــذکـــرۀ ئـــي ده حسیـــنــــــه دَ جهـــــان
ددي در پــــه شـــان ګـفتــــار نشتــــه دُنیـا کښـي
لـــکــــه نــمـــر پشـــان رڼــا ئـــی دَ دُنیـــا ده
ددي در پـــــه شـــان انـــوار نشتـــــه دُنیـــا کښـــي
پـــه هــرځـائـے بـانـدي ددغـي در سپـرلـے دے
ددي در پــــه شـــان بهـــار نشتـــــه دُنیـــا کښـــي
دَ احــمـــد عـلـــی دا ذکـــر پــرے ښـــائستـــۀ دے

بـل دَزړۀ سـکـون قـرار نشتـه دُنیـا کښـي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ثـانـی نشتـه دَرسول ﷺ پـه ټول جهـان کښـي
لاثـانـی دے دُنیـا پـه هـریـان کښـي

پـه ښُـکـلا ئـي هر اَسمـان دے ښائستـۀ شوے
پـه ښُـکـلا ئـي ټول جهـان دے ښائستـۀ شوے
داسـے نشتـه دے حسین پـه لامـکـان کښـي
لاثـانـی دے دُنیـا پـه هـریـان کښـي

پـه ښُـکـلا ئـي ښائستـۀ شوے هـر چـمـن
پـه ښُـکـلا ئـي ښائستـۀ شوے هـروطـن
خـوشبـوئـي ئـي ده هـرځائے هر ګلستان کښـي
لاثـانـی دے دُنیـا پـه هـریـان کښـي

پـه ښُـکـلا بـانـدې ښائستـه ئـي مدینـه کړه
پـه ښُـکـلا بـانـدې ښائستـۀ ئـي هر حصـه کړه
داسـے نشتـه دے ښُـکـلا پـه یـو مکـان کښـي
لاثـانـی دے دُنیـا پـه هـریـان کښـي

دَ انـوارونـه ئـي ډك دا ټـول جهـان دے
دَ انـوارو نـه ئـي ډك هـم لامـکـان دے
لـکـه نـمـر چـي وی روښـانـه پـه اَسمـان کښـي
لاثـانـی دے دُنیـا پـه هـریـان کښـي

عرش کرسي ئې دَ بشکلا په تماشا دي
لوح قلم ورسره بيا په تماشا دي
اے احمده! ټول اخلاق ئې دي قرآن کښې
لاثاني دے د دُنيا په هريان کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ثاني نۀ لري رسول ﷺ په يو صفت کښې
لاثاني دے دَ دُنيا په شريعت کښې
شريعت ئې بشۀ کامل ددې جهان دے
شريعت ئې بشۀ کامله عاليشان دے
نور انوار لري هر ځائے په هر سنت کښې
ثاني نۀ لري رسول ﷺ په يو صفت کښې
د دُنيا ټول احکامات په کښې موجود دي
دَعقبیٰ ټول احکامات په کښې موجود دي
هريو څيز شته دَ رسول ﷺ په هدايت کښې
ثاني نۀ لري رسول ﷺ په يو صفت کښې
مونځ روژه اوحج چې هرڅۀ دي کامل دي
بشۀ کامل دي هغه هرڅۀ چې نازل دي
کاميابي ده دَ رسول الله ﷺ نسبت کښې
ثاني نۀ لري رسول ﷺ په يو صفت کښې
اے احمد علي! انوار ټول دَ نبي ﷺ دي

احکامات چې خومره تل دَ هاشمي ﷺ دي
کامیابي ده دَ رسول ﷺ په اطاعت کښې
ثاني نۀ لري رسول ﷺ په یو صفت کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راته معلومه ده چې سیَدالوریٰ ﷺ ښکلے دے
دغې نسبت سره هر دَ مصطفیٰ ﷺ ښکلے دے
ښکلے دے ښکلے ثاني نۀ لري دُنیا کښې دغه
ښکلے دے ښکلے ثاني نۀ لري ښُکلا کښې دغه
په دے دُنیا کښې دغه دربې انتها ښکلے دے
راته معلومه ده چې سیَدالوریٰ ﷺ ښکلے دے
دغې نسبت سره هر دَ مصطفیٰ ﷺ ښکلے دے
هریو محفل دَ پاك نبي ﷺ ښائسته مثال نۀ لري
داسې محفل په کائنات کښې بل جمال نۀ لري
نوراني نور سره ترلے په رنا ښکلے دے
راته معلومه ده چې سیَدالوریٰ ﷺ ښکلے دے
دغې نسبت سره هر دَ مصطفیٰ ﷺ ښکلے دے
هریو محفل ئې لاجواب ددې دُنیا یادیږي
لاثاني دغه په ښُلا سره بیا بیا یادیږي
قسم دے نُور سره ښائسته دَ مجتبیٰ ﷺ ښکلے دے
راته معلومه ده چې سیَدالوریٰ ﷺ ښکلے دے

دغې نسبت سره هر دَ مصطفىٰ ﷺ ښکلے دے
ورتــه کتــو بــاندې نــهٔ ستــرګـے دَ دُنیـا مـړیـږي
ورتــه کتــو بــانـدې نــهٔ سترګـے زما ستا مـړیـږي
احـمده !ځکه چې دا ځائے تول په طٰهٰ ﷺ ښکلے دے
راتــه معـلومــه ده چــې سیّدالورىٰ ﷺ ښکلے دے
دغې نسبت سره هر دَ مـصطفىٰ ﷺ ښکلے دے

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

ښـائستــهٔ ښـکـلـې ښـارونـه مدینې تـه نـهٔ رسیـږي
ښُـکـلا کښـې دَ رسول اللّٰـه ﷺ کوڅې ته نهٔ رسیږي
مـخـلـوق کښـې ملائك دي مرتبـه ئې ده اُوچتـه
پــه دوی کښـې يـوه هم ئې مرتبې تــه نــهٔ رسیـږي
يـو لاکــه څلیـریشت زره څـهٔ کم زيات پیـغـمبـران
پــه دوی کښې یو نبی ﷺ ئې مرتبې تـه نـهٔ رسیږي
تـورات دے کـهٔ زبـور دے کـهٔ انـجیـل هـریو کتاب
دا ټـول ئـې دَ قـراٰن يـو مـعـجزې تـه نـهٔ رسیـږي
اصـحــابؓ ئــې ټـول عــالـې دي دَ دُنیـا ددغـې در
ولیـــان ئـې دَ دُنیــا ټـول يو جلوې تــه نــهٔ رسیــږي
هـرکـور ئـې پــه دُنیــا بــاندې مرکز دے دَ انـوارو
لـه دے وجے دُنیا کښې څوك کعبے تهٔ نهٔ رسیږي
عــظیـم پــه هر صفت سره احـمده هغـه یاد دے

دُنیا ئي پـه دنُیـا کښې یو ے شپې تـه نۀ رسیـږی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ختـمــه سلسلــه دَ نبوت پــه تـا سـرداره ﷺ ده
ډېــه لــه حـکـمــت نــه ده دا ډکــه لــه انواره ده
ختـمــه سلسلــه دَ هـدایــت ده دَ جهـان پــه تـا
ختـمــه سلسلــه دَ هـر عـزت ده دَ جهـان پــه تـا
دا پــه کـائـنـات کښې پــه دُنیـا هـر چـا دَ پـاره ده
ډېــه لــه حـکـمــت نــه ده دا ډکــه لــه انواره ده
ختـمــه سلسلــه ده دَ هــر حُسن او رڼـا پــه تـا
ختـمــه سلسلــه ده کـائـنـات کښې دَ وفـا پـه تـا
نیـغــه پــه دُنیـا کښې ستـا دَ دین شریعت لاره ده
ډېــه لــه حـکـمــت نــه ده دا ډکــه لــه انواره ده
ختـمــه سلسلــه ده دَ نبیـانو پــه آخر کښې ئي
دلتــه پــه دُنیـا دَ مُرسلانو پــه آخـر کښې ئـي
نیــغــه لاره دغــه ښــۀ صـفـا ده ښــۀ هـواره ده
ډېــه لــه حـکـمــت نــه ده دا ډکــه لــه انواره ده
ختـمـه سلسلـه پـه تـا ده خـاتـم الرسل ﷺ ئي تـه
ختـمـه سلسلـه پـه تـاده نورسره هم کل ﷺ ئي تـه
مــا دغــه غـوښتـلـے دَ الـلّــه پـروردیـګـاره ده
ډېــه لــه حـکـمــت نــه ده دا ډکــه لــه انواره ده

زۀ احمد علی به دا بیان دلته په جار کوُم
زۀ د دې خبرې ښۀ جار سره اقرار کوُم
دابهترین لاره تۀ ول اُمت لره تیاره ده
ځکه له حکمت نه ده دا ځکه له انواره ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اے دَ مکې حبیبه ! ﷺ دَ مدینې حبیبه ! ﷺ
تاله درتلل غواړمه تاته نزدې حبیبه ! ﷺ
تاسره هلته کښې زۀ پاتے کیدل غواړمه
تاسره هلته کښې زۀ تل اُسیدل غواړمه
کرېږم دلته کښې زۀ تل تاپسې حبیبه ! ﷺ
تاله درتلل غواړمه تاته نزدې حبیبه ! ﷺ
ژوندون مې ګران دے دلته پاتے کیدے نشمه
ژوندون مې ګران دے دلته ایساریدے نشمه
په تا پسې کرېږم دَ شنې روضې حبیبه ! ﷺ
تاله درتلل غواړمه تاته نزدې حبیبه ! ﷺ
ګران دے ژوندون زما دا ، لکه په اُور کښې چې وی
ګران دے ژوندون زما دا ، لکه په ګور کښې چې وی
راته یادیږې ډیر ډیر دَ مرتبې حبیبه ! ﷺ
تاله درتلل غواړمه تاته نزدې حبیبه ! ﷺ
ورځے اوشپے دلته کښې ګرانې په ماتیرېږی

دَ ژوند لمحے دلته کېږي ګرانـي په ماتيرېږي
رابـه شي کـلـه په ما، دغه مزې حبيبه! ﷺ
تـالـه درتـلـل غـواړمـه تـاتـه نزدې حبيبـه! ﷺ
رابـانـدې روځے او شپے لـکه دَ کال تيرېږي
سختے دا مـاليـدلـي پـه ما دا حال تيرېږي
احمد ته ورځے شولے دلته کېږي شپے حبيبه! ﷺ
تـالـه درتـلـل غـواړمـه تـاتـه نزدې حبيبـه! ﷺ

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

څوك چې محمد رسول اللّٰه ﷺ پسے روان دې
دُوی لـکـه دَ ستورو قـدرمـنـده عـاليشـان دی
څوك چې اقتدا کوي دَ سيّدالـورىٰ نبي ﷺ
څوك چې اقتدا کوي دَ نُور او دَ رڼا نبي ﷺ
خورم قسم ګلونه په هر ځائے کېږي دَ ريحان دې
دُوی لـکـه دَ ستورو قـدرمـنـده عـاليشـان دی
چاته چې محبوب وی دا صادقه او امين نبي ﷺ
چاته چې محبوب وی دا عالي صفت يٰسين نبي ﷺ
داسے خلق دلته شائستهٔ شوی دَ جهان دی
دُوی لـکـه دَ ستورو قـدرمـنـده عـاليشـان دی
چاته چې محبوب وی اداګاني دَ رسول اللّٰه ﷺ
چا ته چې محبوب وی صداګاني دَ رسول الله ﷺ

داسے خلق هر ځائے ښهٔ کامله په ایمان دی
دُوی لکه دَ ستورو قدرمنده عالیشان دی
چا ته چې محبوب وی هر صفت دَ مصطفیٰ نبی ﷺ
چا ته چې محبوب وی صداقت دَ مصطفیٰ نبی ﷺ
دغه ښهٔ صادقه دَ نبی ﷺ تول امتیان دی
دُوی لکه دَ ستورو قدرمنده عالیشان دی
چا ته چې محبوب وی هر سنت دَ پاك رسول الله ﷺ
چا ته چې محبوب وی شریعت دَ پاك رسول الله ﷺ
خورم قسم ښائسته ګلونه دُوی دَ ګلستان دی
دُوی لکه دَ ستورو قدرمنده عالیشان دی
چا ته چې محبوب وی محفلونه دَ رسول ﷺ دَ در
چا ته چې محبوب وی تول ګلونه دَ رسول ﷺ دَ در
اے احمده! دغه ښهٔ صادقه عاشقان دی
دُوی لکه دَ ستورو قدرمنده عالیشان دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے هر صفت سره نبی آخرزمان ﷺ دے
ځکه چې محبوب هغه دَ پاك غنی سبحان دے
ښُکلے په اخلاق سره دے ښکلے هر صفت سره
ښکلے په دُنیا کښې دے ښائستهٔ په شریعت سره
ښکلے په دُنیا کښې لکه ګل دَ ګلستان دے

ځکـه چې محبوب هغـه دَ پاك غنى سبحان دے

ښـكـلـے پـه حيـا سره دے ښکلے پـه وفا سره

خـورم قسـم ډيـر ښـكـلـے پـه دُنيا دے هر ادا سره

نـمـر پـه شان روښانـه هر طرف تـه پـه جهان دے

ځكـه چې محبوب هغـه دَ پاك غنى سبحان دے

ښـكـلـے سخاوت سره دے ښكلے محبت سره

ښـكـلـے امانت سره دے ښـكـلے صداقت سره

دغـــه عـــقيده مې ده او دغـــه مې ايمـــان دے

ځكـه چې محبوب هغـه دَ پاك غنى سبحان دے

ښكلے پـه هر نور سره دے ښكلے هر گفتار سره

ښـكـلـے پـه دُنيـا كښې دَ دُنيا دے پـه دربار سره

اے احـمـده ! دلتـــه پـــه هـر چـا دَ رب بـر هـان دے

ځكـه چې محبوب هغـه دَ پاك غنى سبحان دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زلفے ئې واللّيل دى ښائستـهٔ مخ ئې والضحىٰ دے

ځـكــه چې محبوب هغـه زمونږه دَمولىٰ دے

زلـــفـــے ئـــې واللّيـل دى تـورے تـورے دَ جهـــان

داسے بـــه بـل نـهٔ وى پـه دُنيـا كښې يو سلطـان

هـر صـفـت سره هغـه عـالى دے ډير اعلىٰ دے

ځـكــه چې محبوب هغـه زمونږه دَمولىٰ دے

مخ ئې نوراني دے رڼا نور دے دَ هر در
مخ ئې نوراني دے عالیشان لکه قمر
یاد په کائنات کښې په هر در په نُور رڼا دے
ځکه چې محبوب هغه زمونږه دَمولیٰ دے
یاد دے په رحمت دَ کائنات دَهریو در
نور دَ شریعت دَ کائنات دَ هریو در
خورم قسم دُنیا کښې هر صفت سره جُدا دے
ځکه چې محبوب هغه زمونږه دَمولیٰ دے
یاد دے نوراني نور هم شفیع المذنبین ﷺ هغه
اے احمده! نور دے دَ دُنیا دَ در قسم دے په یقین هغه
دغه شان یاد شوے په خاتم الانبیاء ﷺ دے
ځکه چې محبوب هغه زمونږه دَمولیٰ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خوږے دی زیاتے له کبینه دَ طٰهٰ ﷺ خبرے
داسے به دلته په دُنیا وی دَ بل چا خبرے
دَ انوار اتو دَ رسول ﷺ چې تذکره کوی څوك
داسے ښائسته به یو ځائے نهٔ وی په دُنیا خبرے
دَ رحمتونو په دُنیا چې ئې څوك ذکر کوی
ښائسته دی دغه په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ خبرے
څوك چې ئې ذکر دَ جمال په دے دُنیا کښې کوی

داسې به نهٔ وي دَ دُنيا دَ دراعلٰی خبرے
څوك چې ئې ذكر دَ محفل په دے دُنيا كوي نن
لاثاني دي ددغې در دَهرادا خبرے
څوك چې ئې ذكر په دُنيا دَ محبت كوي نن
احمده ! دغه دي دُنيا كښې دَ وفا خبرے

## نعتِ مصطفٰی ﷺ

خوښے مې كوځے دَ مدينې منورې دي
ځكه دلته كښې دَ پاك رسول ﷺ دَ نُورجلوې دي
دلته انوارات دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ دي
دلته بركات زمونږ دَ سيّدالورٰی ﷺ دي
دلته دَ انوارو جاري شوې تل چينې دي
دلته كښې ښُكلا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ده
دا ښكلے فضا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ ده
دلته كښې حسينے دَ دُنيا دا باغيچې دي
دلته كښې انوار دَ جبرائيل او ميكائيل شته
دلته كښې انوار دَ اسرافيل او ميكائيل شته
دلته كښې راغلے ډيرے نورے فريښتې دي
دلته كښې انوار هم دَ اصحابوؓ دَ نبي ﷺ شته
دلته كښې انوار دَ كائنات دَ هرولی شته
څوك چې دغه نهٔ وينې نو سترګے ئې ړندې دي

دلته کښې انوار شته دَ صدیقؓ هم دَ عمرؓ
دلته کښې انوار شته دَ عثمانؓ او دَ حیدرؓ
دلته معطره دَ بدن تهولے خولې دی
دلته کښې انوار هم دَ حسنؓ او دَ حسینؓ شته
دلته کښې ګلزار هم دَ حسنؓ او دَحسینؓ شته
دلته کښې پرتے دَ هر بشر تهولې مزې دی
دلته کښې انوار هم دَ بیبیانو دَ نبی ﷺ شته دے
دلته دا انوار دَ کائنات ښۀ حقیقی شته دے
اے احمده ! نُور نه ډکے دلته سجدې دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سیَدالوریٰ ﷺ ئې تۀ، نورئی مصطفیٰ ﷺ ئې تۀ
زۀ امتی ستا یمه، تل رهبر ﷺ زمائې تۀ
مدحه ستا صفت لیکم
دا به هر ساعت لیکم
نُور دَ هر صبائې تۀ، احسن الوریٰ ﷺ ئې تۀ
زۀ امتی ستا یمه، تل رهبر ﷺ زمائې تۀ
تۀ رڼائې تول
ښُکلے ئې ښُکلائې تول
دَ هر در ښُکلائې تۀ، دَ هر در رڼائې تۀ
زۀ امتی ستا یمه، تل رهبر ﷺ زمائې تۀ

خوش ئې تۀ دَ هر بشر

خوش ئې تۀ دَ هر يو در

خوش دَ پاك اللّٰه ئې تۀ، ياد داسے هرخوائي تۀ

زۀ امتى ستا يمه، تل رهبر ﷺ زمائي تۀ

تۀ عالى نسبت ئې هم

تۀ عالى صفت ئې هم

خوش دَ انبياء ئې تۀ، خوش دَ علماء ئې تۀ

زۀ امتى ستا يمه، تل رهبر ﷺ زمائي تۀ

تۀ عالى مقام لرے

ادب احترام لرے

دَ احمد وينائي تۀ، دا وينا صفائي تۀ

زۀ امتى ستا يمه، تل رهبر ﷺ زمائي تۀ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مدح خوان يم ثنا خوان دَ محمد ﷺ

زۀ هر ځائے کښې په جهان دَ محمد ﷺ

بيش قيمته په دُنيائي هر بيان دے

دى لعلونه هر بيان دَ محمد ﷺ

زۀ هر ځائے کښې په هرلورئي ذكر كومه

يادومه هر احسان دَ محمد ﷺ

تذكرۀ ده بيش قيمته دَ رسول ﷺ

شان دے شان هر یو اُذان دَ محمد ﷺ
په کلمه اوځکه مونځ کښې هغه یاد دے
دا دے حکم دَ رحمٰن دَ محمد ﷺ
نوم سره ئې دَ درود حکم راغلے
دا تعلیم دے دا دے شان دَ محمد ﷺ
دَ اخلاقو نه ئې جوړ دغه قرآن دے
نازل شوے دا قرآن دَ محمد ﷺ
لوئی نسبت ئې عالی کړے هر یو څیز
ښۀ عالی دے هر مکان دَ محمد ﷺ
دَ آسمان په بره ستورو باندی یاد دی
دا مقام لري دوستان دَ محمد ﷺ
تذکره ئې خوشبوئی دَ هر یو دره
اے احمده ! هر اعلان دَ محمد ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر چمن کښې ده ښُکلا دَ محمد ﷺ
هر وطن کښې ده رڼا دَ محمد ﷺ
هر یو ګل ددغې در په خوشحالی دے
معطَره ده فضا دَ محمد ﷺ
دَ انوارو سلسله ددغې دره
ابتدا ده انتها دَ محمد ﷺ

هريو ځيز ئې په انوارو منور دے
نُور نه ډکه ده وينا دَ محمد ﷺ

ښۀ اخلاق ئې دَ دُنيا د ريا ديږي
هر دا ده نُور ضياء دَ محمد ﷺ

په حيا سره ياد شوې در په در دے
تذکره شته دَ وفا دَ محمد ﷺ

په امين باندې ياد شوې ټول عرب کښې
ښۀ صفت شته دَ رښتيا دَ محمد ﷺ

سخاوت ئې دَ هر چا نه وو ډير زيات
ذکر کړے دے هر چا دَ محمد ﷺ

اے احمده! ياد په هر صفت سره دے
داوينا ده ښۀ صفا دَ محمد ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ختمه شوے دَ نبيانو سلسله په محمد ﷺ ده
منوَره په دُنيا کښې هر حصه په محمد ﷺ ده

هر آسمان دَ پاره نُور دے لا مکان دَ پاره نور
دَ انوارو د دُنيا دا مجموعه دَ محمد ﷺ ده

دَ هريو وطن دُنيا کښې دَ هريو چمن ښُکلا ده
ښائسته هريو در دُنيا کښې، مدينه په محمد ﷺ ده

دَ هر در دَ هر بشر، هغه سيورے دَ رحمت دے

ښائسته هره یوه دلته ګلدسته په محمد ﷺ ده
ادا ګانې ئې لعلونه د دُنیا د دغې در دی
اے احمده ! دا آباده باغیچه په محمد ﷺ ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښهٔ ښائستهٔ ښکلے حسینه مدینه دَ محمد ﷺ ده
ښهٔ ښائستهٔ ښکلے دُنیا کښې باغیچه دَ محمد ﷺ ده
دَ قیامت پورے دُنیا کښې دا قرآن به دغه شان وی
دا ژوندے دلته دُنیا کښې معجزه دَ محمد ﷺ ده
دا جاری چې نن چینے دی دَ انوارو در په در
په دُنیا کښې په هر ځائے کښې هر چینه دَ محمد ﷺ ده
دا ګلونه ټول اصحابؓ چې ښائسته په دوی جهان دے
دَ ګلونو دَ دُنیا دا ګلدسته دَ محمد ﷺ ده
هر ذرّه ئې قیمتی ده ، هر حصه ئې قیمتی ده
بهترینه دَ دُنیا دَ در حصه دَ محمد ﷺ ده
ظلمتونو نه ده لرے ، نفرتونو نه ده لرے
دَ انوارو نه ښهٔ ډکه ، طریقه دَ محمد ﷺ ده
دَ احسان بدله احسان ده ، دَ کرم ورسره بله
په دُنیا کښې په هر در، دغه بدله دَ محمد ﷺ ده
لکه ګل غوندے صورت ئې داسے نشته په دُنیا کښې
مشک عنبر ورته نهٔ رسی دا خوله دَ محمد ﷺ ده

اے احمده ! بنۀ کامل دے، بل کامل به دا سے نۀ وی
بنـۀ عظیمـه دَ دُنیـا دا تذکـره دَ محمـد ﷺ ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُـور دُنیـا کښـې دَ عـالَـم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
رڼـا نُـور دَ هـر تـورتـم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
دَ هـر چـا دَ زړۀ سـکـون دَ زړۀ قـرار ئـې
دَ هـر زړۀ زخـمـی مـلهـم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
دَ هـر چـا دَ سترګـو نُـور ئـې دَ جهـان
تـل عـلاج دَ هـر یـو غـم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
مـرتبـه دے دَ شـاهـانـو نـه اوچتـه
نـه دَ چـا سـره تـۀ سم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
مـرتبـه کښـې دَ آدمؑ نـه ئـې اوچـت
پـه اولاد کښـې دَ آدمؑ ئـې مـحـمـده ! ﷺ
سـخـاوت دے لا ثـانـی ددې جهـان دے
تـۀ اوچـت لـه هـر حـاتـم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
آخـری ئـې پـه ټـولـی کښـې دَ نبیـانـو
پـه لـقـب سـره خـاتـم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
دَ وفـا صـفـت دے تـا سـره تـړلـے
مـجـوعـه دَ نُـور کـرم ئـې مـحـمـده ! ﷺ
آخـریـن ئـې پـه آخـر کښـې ئـې راغـلـے

په رُتبه کښې مقدَم ئې محمده ! ﷺ

رهبرانو له رهبر دَ ټول جهان ئې

نوراني ټول مجسَم ئې محمده ! ﷺ

په عرب باندی هم ستا مهرباني ده

مهربان په ټول عجم ئې محمده ! ﷺ

دَ کوثر په حوض به خپل اُمَت راغواړې

ته شفيع ئې محترم ئې محمده ! ﷺ

ستا په شان به پيدا نۀ شی بل بشر

داسې ياد په هر قلم ئې محمده ! ﷺ

دَ احمد علی دَ زړۀ علاج سکون ئې

ځکه زړۀ کښې ئې هر دم ئې محمده ! ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته په هر صفت سره هر کل دَ مدينې دے

ساکن ددغې در خير الرُسل ﷺ دَ مدينې دے

اعلیٰ ځکه اعلیٰ دے ددې در دغه محفل

بالا ځکه بالا دغه محفل دے دلته ټل

نبی ﷺ سره ښائسته هريو محفل دَ مدينې دے

ساکن ددغې در خير الرُسل ﷺ دَ مدينې دے

اعلیٰ ئې ټول څيزونه ، په دُنيا باندې ياديږي

اعلیٰ ئې دی باغونه ، په دُنيا باندې ياديږي

علاج هریو مرض له ذکر تل دَ مدینې دے
ساکن ددغې در خیر الرُّسل ﷺ دَ مدینې دے
وریږی په دې در باندې، دَ ربَ فضل وکرم
وریږی په دې در باندې ، انوار دلته هر دم
حسین دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ هر خپل دَ مدینې دے
ساکن ددغې در خیر الرُّسل ﷺ دَ مدینې دے
چینے په کښې بهیږی، دَ انوارو دَ نبی ﷺ
چینے په کښې بهیږی، دَ مکی او مدنی ﷺ
احمد وائی ښائسته هریو منزل دَ مدینې دے
ساکن ددغې در خیر الرُّسل ﷺ دَ مدینې دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

کار په دُنیا کښې همیشه دَ هر سنت پکار دے
کار په دُنیا کښې همیشه دَ شریعت پکار دے
دغه رڼا ده هم ښُکلا ده دَ هریو بشر
دغه رڼا ده هم ښُکلا ده دَ دُنیا دَ در
همیشه دلته هریو کار ښهٔ دَ عزت پکار دے
کار په دُنیا کښې همیشه دَ شریعت پکار دے
په کښې عزت دَ دوجهان دے هر بشر دَ پاره
په کښې عزت دَ دوجهان دے هر افسر دَ پاره
په هریو کار کښې دَ نبی ﷺ ښهٔ اطاعت پکار دے

کار په دُنیا کېږي همیشه دَ شریعت پکار دے
په اطاعت کېږي دَ نبي ﷺ، فلاح دَ دوجهان ده
په اطاعت کېږي دَ نبي ﷺ، فلاح دَ هر انسان ده
کار په دُنیا کېږي همیشه دَ عبادت پکار دے
کار په دُنیا کېږي همیشه دَ شریعت پکار دے
هر عبادت دَ زړۀ نه زنګ، دَ هر بشر ختموي
هر عبادت دَ زړۀ نه زنګ، په هر یو در ختموي
کار هر طرف ته په دُنیا، دَ صداقت پکار دے
کار په دُنیا کېږي همیشه دَ شریعت پکار دے
دا صداقت دَ ے لوئي صفت دَ هر بشر دَ پاره
دغه بُکلا ده په دُنیا دَ هر افسر دَ پاره
احمده! دغه دَ دُنیا دَ در صفت پکار دے
کار په دُنیا کېږي همیشه دَ شریعت پکار دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر کامیابی له اطاعت، دَ محمد ﷺ کافي دے
هر کامیابی له نسبت، دَ محمد ﷺ کافي دے
څوک چي نن غواړي په هر دربانديِ فلاح دلته کېږي
سکون د داسے خلقو شته دے دَ ارواح دلته کېږي
دغې بشر له شریعت دَ محمد ﷺ کافي دے
هر کامیابی له اطاعت، دَ محمد ﷺ کافي دے

څوك چې رضا دَ الله غواړي ، هغه دلته كنبې شته
څوك چې رضا دَ طٰهٰ ﷺ غواړي هغه دلته كنبې شته
په دغه وخت كنبې نور رحمت دَ محمد ﷺ كافي دے
هر كاميابى له اطاعت، دَ محمد ﷺ كافي دے
ددې دُنيا او دَ آخر دَ كاميابى ده لاره
لاره ده لاره په دُنيا دا هر چا دَ پاره
مونږ له هر ځائے كنبې نُور سنت دَ محمد ﷺ كافي دے
هر كاميابى له اطاعت، دَ محمد ﷺ كافي دے
لار دَ نبى ﷺ ده هر امام په دغه لاره تلے
لار دَ نبى ﷺ ده خاص وعام په دغه لاره تلے
مونږ له ژوندون دَ پاك حضرت دَ محمد ﷺ كافي دے
هر كاميابى له اطاعت، دَ محمد ﷺ كافي دے
لار دَ نبى ﷺ ده ټول اصحابؓ په دغه لاره تلى
ټول خلق دلته په هر باب په دغه لاره تلى
مونږ له پاك نوم دغه ساعت دَ محمد ﷺ كافي دے
هر كاميابى له اطاعت، دَ محمد ﷺ كافي دے
ښُكلا دُنيا كنبې دَ نبى ﷺ نُور طريقې سره ده
احمده ! دلته دا ښُكلا پاكې روضې سره ده
هر يو بشر له محبت دَ محمد ﷺ كافي دے
هر كاميابى له اطاعت، دَ محمد ﷺ كافي دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته په ټول عالم کښې هريان دَ مديني دے
ساکن ددغې در ځکه سلطان دَ مديني ﷺ دے
ساکن ددغې در دے محمد خير الابرار ﷺ
ساکن ددغې در دے دَ کونينو تاجدار ﷺ
ځکه په کائنات کښې ډير لوئې شان دَ مدينے دے
ساکن ددغې در ځکه سلطان دَ مديني ﷺ دے
ساکن ددغې در دے دَ صديقؓ سره عمرؓ
ساکن دَ دغې در دَ عثمانؓ سره حيدرؓ
بلالؓ دَ مدينې دے هم حسّانؓ دَ مدينې دے
ساکن ددغې در ځکه سلطان دَ مديني ﷺ دے
ساکن ددغې در دے دَ حسينؓ سره حَسنؓ
سکون دلته کښې شته دے دَ دُنيا دَ هريدن
ښائستهٔ په هر صفت ټول ګلستان دَ مديني دے
ساکن ددغې در ځکه سلطان دَ مديني ﷺ دے
ساکن ددغې در دی هم بيبيانے دَ نبي ﷺ
ساکن ددغې در دی رناګانے دَنبي ﷺ
په نُور سره ښائسته دا ټول جهان دَ مديني دے
ساکن ددغې در ځکه سلطان دَ مديني ﷺ دے
ساکن ددغې در دے اے احمده ! اطمينان

ساکن ددغي در دے اطمینان دَ ټول جهان
خوشحاله ځکه هر بشر انسان دَ مدینې دے
ساکن ددغي در ځکه سلطان دَ مدینې ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سردار دَ کائنات خیر الانام ﷺ دَ مدینې دے
دُنیا کښې مسلمانه دا مقام دَ مدینې دے
مسکن دَ محمد ﷺ دے دا مدفن دَ محمد ﷺ
چمن دَ محمد ﷺ دے دا وطن دَ محمد ﷺ
دُنیا کښې ځکه هر ځائے احترام دَ مدینې دے
سردار دَ کائنات خیر الانام ﷺ دَ مدینې دے
انوار دي مدینه کښې په هر لار دَ محمد ﷺ
ښائسته دلته هر در دے هر گلزار دَ محمد ﷺ
ښائسته دَ هر سحر سره ماښام دَ مدینې دے
سردار دَ کائنات خیر الانام ﷺ دَ مدینې دے
خوشبو په کښې پرته دَ مرسلانو دَ سردار ﷺ ده
خوشبو په کښې پرته دَ امامانو دَ تاجدار ﷺ ده
رهبر دَ امامانو ټول امام دَ مدینې دے
سردار دَ کائنات خیر الانام ﷺ دَ مدینې دے
رحمت په کښې هر ځائے کښې په هر در باندې وریږي
رحمت په کښې هر ځائے کښې هر بشر باندې وریږي

شــریــن لـــه هــرګبینـــه هــرکـلام دَ مـدینـي دے
ســـردار دَ کـــائـنـات خیــر الانــام ﷺ دَ مـدینـي دے
سـکـون پـه کـبـنـي دے پـروت دَ هـر بشـر دَ پاره دلتـه
ژونـدون پـه کـبـنـي دے پـروت دَهـر بشـر دَ پاره دلتـه
احـمــده ! ډك دَ مـیـنــے نــه هـر جـام دَ مـدینـي دے
ســـردار دَ کـــائـنـات خیــر الانــام ﷺ دَ مـدینـي دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خورم قسم زمونږ نبی ﷺ کامل دے په خپل ذات کبني
نشتــــه نشتـــه دغـــه شـان بشــر پـه کائنات کبني
نـور سـره دے یـاد هـغـه دُنیا کبنـي مجسّم نبـی ﷺ
نشتـه نشتـه دغـه شـان بشـر پـه ټول جهـات کبنـي
میـنـــه مـحـبـت سـره یـادیـږی پــه هـر در هـغــه
داسـے میـنـــه نشتـــه دَ دُنیا پــه مـخـلـوقات کبـني
سیـــوري دَ دُنیــا دَهـــر بشـــر دے دَ هـــر در هـغـــه
داسـے سـیـوري نشتـه یـو بشـر لـه مشـکلات کبـني
نُــور دَ هـــر نــظـر دے داســے وائــی دَ دُنیــا خـلـق
څـوك ئـي ثـانـی نشتـــه دَ دُنیا پـه کـمـالات کبـني
نـوم ئـي هـریـو غـم لـره دُنیا کبنـي زۀ کافـی ګـنـم
نشتـه نشتـه دغـه شان دُنیا کبنـي پـه صفات کبنـي
وُســی مـؤمـنـانـو سـره زړۀ کبنـي هرساعـت هغـه

وُسی دَ احمدعلی په زړۀ کښې په خيالات کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نشته دَ رسول اللّٰه ﷺ ثانی په ټول عالَم کښې
نشته نشته نشته په عرب او په عجم کښې
زړۀ لره سکون دے اطمينان دے مجسَم هغه
څوك چې يادوی ئې دَ دُنيا په هريو غم کښې
نور رڼا دُنيا کښې دَ دُنيا دَ هريو لارے دے
نور رڼا ده دلته دَ دُنيا په هر تورتم کښې
مينه محبت سره دے ياد په هريو درهغه
لاثانی يادېږی په دُنيا کښې په کرم کښې
سپوږي دَ رحمت دے هر غريب دَ پاره دلته کښې
داسے نشته بل بشر دُنيا کښې په رحم کښې
شافع محشر دے دَ اللّٰه ربُّ العزت په در
ما احمد ليکلے ئې صفت دے په نظم کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ياد په هر صفت سره دُنيا کښې په هرلور دے
نوربشر ﷺ ياد شوې په دُنيا کښې کورپه کور دے
نور سره ياد شوې په صفت خير الوری ﷺ زمونږ
هم بشر ياد شوې محمد رسول اللّٰه ﷺ زمونږ
ياد په کائنات کښې په قوَت سره په زُور دے

یاد په هر صفت سره دُنیا کښې په هرلور دے

نُور دَ هریو زړۀ دے په دُنیا دَ هر انسان

نور دَ هریو زړۀ دے په دُنیا دَ مسلمان

داسے هر طرف ته آوازونه دی او شُور دے

یاد په هر صفت سره دُنیا کښې په هرلور دے

نُور دَ هر مکان دے داسے یاد په ټول عالم کښې دے

نُور دَ هر انسان دے داسے یاد عرب عجم کښې دے

زړۀ صفا کوی هغه چې دلته کښې کُوم تور دے

یاد په هر صفت سره دُنیا کښې په هرلور دے

نُور دَ هریو لارے اے احمدعلی یادیږی تل

نُور سره کامل نبی ﷺ دُنیا کښې بیانیږی تل

بچ په دغې نُور سره هریو بشر له اُور دے

یاد په هر صفت سره دُنیا کښې په هرلور دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر سنت دَ محمد ﷺ بهترینه ښۀ توښه ده

شریعت دَ محمد ﷺ بهترینه ښۀ توښه ده

بهترینه ښۀ توښۀ ده دَ دُنیا دَهر بشر

بهترینه ښۀ توښۀ ده په دُنیا کښې په هردر

هدایت دَ محمد ﷺ بهترینه ښۀ توښه ده

شریعت دَ محمد ﷺ بهترینه ښۀ توښه ده

ښــۀ تــوښـــه دَ هــرېشـــر ده هــرزنـا دَ مـحـمـد ﷺ
ښــۀ تــوښـــه دَ هــر بشــر ده هــرادا دَ مـحـمـد ﷺ
نُــور رحـمـت دَ مـحـمـد ﷺ بهـتـريـنـه ښـۀ تـوښـه ده
شـريـعـت دَ مـحـمـد ﷺ بهـتـريـنـه ښـۀ تـوښـه ده
ښــۀ تـوښــه دَ هـر بشــر ده هـرويـنـا دَ مـحـمـد ﷺ
ښــۀ تـوښـــه دَ هــرېشــر ده هــروفـا دَ مـحـمـد ﷺ
دا دولــت دَ مـحـمـد ﷺ بهـتـريـنـه ښــۀ تـوښــه ده
شـريـعـت دَ مـحـمـد ﷺ بهـتـريـنـه ښـۀ تـوښـه ده
اے احـمـده ! ښـــۀ تـوښـــه ده اقـتـدا دَ مـحـمـد ﷺ
ښـۀ تـوښــۀ ده پــه اٰخــر كـښـې تل رضـا دَ محمد ﷺ
دا نـعـمـت دَ مـحـمـد ﷺ بهـتـريـنـه ښـۀ تـوښـه ده
شـريـعـت دَ مـحـمـد ﷺ بهـتـريـنـه ښـۀ تـوښـه ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اے مسـلـمـانـه ! دَ رسـول ﷺ مـخـالـفـت مـۀ كـوه
كـارونــه هـيـڅ كـلـه دُنيـا كښـې دَ بـدعـت مـۀ كـوه
كـار كـوه هـغـه چــې رسول اللّٰـه ﷺ وى كـړے دلتـه
كـاركـوه هـغـه چـې خيــرالورىٰ ﷺ وى كـړے دلتـه
هـيـڅ كـلـه دلتـه كـښې كـارونـه دَ ذلـت مـۀ كـوه
اے مسـلـمـانـه ! دَ رسـول ﷺ مـخـالـفـت مـۀ كـوه
هـم دَ قــراٰن ســره سـنـت بـانـدې عـمـل اُوكـړه تـۀ

کامل دُنیا کښې شریعت باندې عمل اُوکړه تۀ
کارونه چرې دَ شیطان دَ شیطانت مۀ کوه
اے مسلمانه! دَ رسول ﷺ مخالفت مۀ کوه
راضی رسول کړه او راضی کړه خپل مولیٰ ورسره
قائم په دغې باندې اُوسه په دُنیا ورسره
دَ دین نه هیڅ کله دُنیا کښې بغاوت مۀ کوه
اے مسلمانه! دَ رسول ﷺ مخالفت مۀ کوه
عامل په دین شۀ باغی جوړ ددغه دین نه نشے
شۀ بهترین شۀ باغی جوړ ددغه دین نه نشے
مخالف کار تۀ هیڅ کله دَ شریعت مۀ کوه
اے مسلمانه! دَ رسول ﷺ مخالفت مۀ کوه
کارونه هر ځائے دَ نیکی او دَ احسان کوه تۀ
هر ځائے کارونه دَ رضا دپاك سبحان کوه تۀ
کار په دُنیا کښې دَ دُنیا دَ ضلالت مۀ کوه
اے مسلمانه! دَ رسول ﷺ مخالفت مۀ کوه
روان په نیغه شه دَ نیغے لار نه لرے نشے
رڼا کښې اُوسه چې ددین انوار نه لرے نشے
کار کښې هیڅ کله دَ شیطان سره شرکت مۀ کوه
اے مسلمانه! دَ رسول ﷺ مخالفت مۀ کوه
لار دَ جنت درنه چې هیره نشی یاده ساته

هـره كـوخـه دَ زړۀ دُنيـا كښـي تـهٔ أبـاده سـاتـه
دَ يـو شيـطـان سـره هـم دلتـه محبـت مـهٔ كوه
اے مسـلـمـانـه! دَ رسول ﷺ مـخالـفت مـهٔ كوه
لار دَ دوزخ ده دَ نـقـصان چي څوك شيطان پسے ځي
نشته دے نشته كاميابى چي بد انسان پسے ځي
دبـدے لارے پيـروي او اطــاعـت مــهٔ كـوه
اے مسـلـمـانـه! دَ رسول ﷺ مـخالـفت مـهٔ كوه
احـمـده! بـچ سـاتـه خپل ځان دَ بغاوت نـه دَ دين
بچ سـاتـه بچ سـاتـه خپل ځان دَ عدوات نـه دَ دين
كـارونـه هيڅ كلـه دُنيا كښي دَ ظلمت مـهٔ كوه
اے مسـلـمـانـه! دَ رسول ﷺ مـخالـفت مـهٔ كوه

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

دَ نبـي ﷺ شـان اُگـوره، شـان دَ جـانـان اُوگـوره
اخـلاق دَ پـاك نبـي ﷺ دي دغـه قـراٰن اُوگـوره
اخـلاق دپـاك نبـي ﷺ دي دغـه قـراٰن دَ ربَ
اخـلاق دَ پـاك نبـي ﷺ دي تـول حـق بيـان دَ ربَ
پـه كـائـنـات كښـي هـر ځـائـے تل پـه جهان اُوگوره
اخـلاق دَ پـاك نبـي ﷺ دي دغـه قـراٰن اُوگـوره
هــريـو ادا ئــي ښــكـلــے ددي دُنيـا د در
هــريـو ادا ئــي ښــكـلــے ده نُــور رنـا دَ در

بـره پـه ستـورو کښـې ئـې پـه هراسمـان اُوګـوره

اخـلاق دَ پـاك نبـی ﷺ دی دغـه قـراٰن اُوګـوره

یاد په کلمے کښې هم دے داسے عالی صفت دے

ذرے ذرے کښـې هـم دے داسے عـالی صفت دے

تـذکـره دلتـه کښـې ئـې پـه هـر اَذان اُوګـوره

اخـلاق دَ پـاك نبـی ﷺ دی دغـه قـراٰن اُوګـوره

هـم پـه حیـا جُـدا دے هـم پـه وفـا جُـدا دے

پـه دغـې خـورم قسـم زۀ پـه هـرادا جُـدا دے

عـالـی صـفـت سـره ئـې هـریـو بیـان اُوګـوره

اخـلاق دَ پـاك نبـی ﷺ دی دغـه قـراٰن اُوګـوره

نُـور دَ اسـمـان دے بـره دَ لامـکـان دے بـره

نـور رنـا شـوې دلتـه پـه هـر مـکـان دے بـره

ښـائسـتـه پـه دغـه نُور ئـې ټـول عـاشقان اُوګوره

اخـلاق دَ پـاك نبـی ﷺ دی دغـه قـراٰن اُوګـوره

رحـمت رحمت دے نبی ﷺ ټول شرافت دے نبی ﷺ

خورم قسم هـر چالـره ډیر لـوئے نعمت دے نبی ﷺ

دا مـنـوَر اَګـوره دا مهـربـان اُوګـوره

اخـلاق دَ پـاك نبـی ﷺ دی دغـه قـراٰن اُوګـوره

ویـنـا خـوږه ئـې ټـولـه پـه هرصفت ښائستـۀ ده

احـمـده ! دغـه ویـنـا تـل هرساعت ښائستـۀ ده

ښائسته پـه دغـه وينا هـر ګلستان اُوګوره
اخـلاق دَ پـاك نبـي ﷺ دي دغـه قـراٰن اُوګـوره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا کتاب دَ ټولو يو دے دغـه شان پيغمبر يو دے
دَ دُنيـا ټـولـے دَ پـاره تـرقيـامتـه رهبر يو دے
زۀ منم چـې رښتيـا وائـی د دُنيـا دَ در کسـان
خو ممتار په دے صديقؓ دے هغه دلته په در يو دے
زۀ منم چـې عـادلان شته دَ عدل ئي مثال نشته
خـو پـه دوی ټولو کښې دلته کښې عدل دَ عمرؓ يو دے
دَ حيا شته نمونے هم بهترين خلق ډير شته دے
خو عثمانؓ ددغې ټولو په دُنيا کښې افسر يو دے
دا منم چـې شجاعت شته هرطرف ته په جهان
خـو دَ دوی ټول سرتاج پـه دُنيا کښې حيدرؓ يو دے
هر وينا دَ خيرخوړه وی پـه دُنيـا کښې هرطرف ته
خـو هادی هـريو بشر لـه هر بهتر نه بهتر يو دے
اے احمده ! هغه څوك دي دَ ګلونو ګلدسته ده
مجموعـه دَ صفتونو پـه دُنيـا کښی بشر يو دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

حکم هـريو حکم مـا دَ پاك رسول ﷺ منلے دے
نُور سره ښائسته ئي هريو ښار دے هريو کلے دے

نُور سره ښائسته ئي هر مکان دے لامکان بره

نور سره ښائسته ئي نوراني دے هر آسمان بره

هم په دغي نُور سره شيطان هر ځائے نه تلے دے

نُور سره ښائسته ئي هريو ښار دے هريو کلے دے

نور سره ښائسته ئي دَ دُنيا ټول محفلونه دي

نُور سره ښائسته ئي په هر خوا ټول محفلونه دي

دغه نُور په سترګو صالحانو هم ليدلے دے

نُور سره ښائسته ئي هريو ښار دے هريو کلے دے

نُور سره ښائسته ئي ده فضا ددي دُنيا دَ در

نورئي تل دے پريښے دَ دُنيا په هر بشر اثر

نور دے نوراني په هر صفت سره ډير ښکلے دے

نُور سره ښائسته ئي هريو ښار دے هريو کلے دے

نُور سره ښائسته ئي دَ صديقؓ سره عمرؓ دے هم

نُور سره ښائسته ئي په دُنيا کښې هر افسر دے هم

دغي نُور دُنيا کښې هر شيطان لعين وژلے دے

نُور سره ښائسته ئي هريو ښار دے هريو کلے دے

نُور سره ښائسته ئي دَ عثمانؓ سره عليؓ دے ټول

نُور سره ښائسته ئي په دُنيا کښې هر ولي دے ټول

اے احمده! ذکر تا دَ نُور ښائسته ليکلے دے

نُور سره ښائسته ئي هريو ښار دے هريو کلے دے

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ارمان مې دَ دُنيا دے چې ساکن دَ مدينې وے
خدمت سره ترلے دَ رسول ﷺ دَ کوڅې وے
ارمان مې دَ دُنيا دے دا خواهش لرم په زړهٔ کښې
ارمان مې دلته دا دے دا خواهش لرم په زړهٔ کښې
خادم په مدينه کښې دَ انوارو دَ روضې وے
خدمت سره ترلے دَ رسول ﷺ دَ کوڅې وے
ارمان مې دَ دُنيا دے دا دَ زړهٔ مې تمنا ده
غوښتلے دَ الله نه ماهم دغسې دُعا ده
خدمت ته زهٔ ولاړ هلته دَ ورځې او دَ شپې وے
خدمت سره ترلے دَ رسول ﷺ دَ کوڅې وے
ارمان لرم په زړهٔ کښې دَ الله نه دغه غواړم
ارمان لرم په زړهٔ کښې دَ مولیٰ نه دغه غواړم
خدمت ته وقف کړے دَ بدن مې دا حصې وے
خدمت سره ترلے دَ رسول ﷺ دَ کوڅې وے
ارمان لرم په زړهٔ کښې هم په دے پسے کړېږم
په ذکر باندې کله دَ رسول الله ﷺ مړېږم
په ژبه مې احمده ! بس هم دغه تذکرې وے
خدمت سره ترلے دَ رسول ﷺ دَ کوڅې وے

★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په زړه مې رسوله! ﷺ ستا دَ ذکر تذکرې وے
ستا خوا سره نزدې وے، ستا خواسره نزدې وے
ستا خواسره نزدې وے مدینه منوره کښې
ستا خوا سره نزدې وے دَ انوارو په هرشپه کښې
رڼا مې ستا په نُور سره دُنیا کښې دغه شپے وے
ستا خوا سره نزدې وے، ستا خواسره نزدې وے
خدمت مې ستا دَ درکوُلے هلته اُوسيدمه
خدمت مې هر سحر کوُلے هلته اُوسيدمه
خادم په مدينه کښې ستا دَ دربنکلے کوڅې وے
ستا خوا سره نزدې وے، ستا خواسره نزدې وے
خدمت په مدينه کښې مې دَ هر بشر کوُلے
خدمت په مدينه کښې مې دَ هريو در کوُلے
ياد شوې در په درزۀ په خادم دَ مدينې وے
ستا خوا سره نزدې وے، ستا خواسره نزدې وے
هروخت او هرساعت مې ستا ښائسته روضه ليدلے
احمدعلي ! هم تا سره نزدې وے اُوسيدلے
ددغې در په وجه معطرے ئې خولے وے
ستا خوا سره نزدې وے، ستا خواسره نزدې وے

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے حسینه مدینه جوړه شوه
دَ مصطفیٰ ﷺ په نُور ښائسته جوړه شوه
نمر او سپوږمي کښې رڼاګاني راغلے
دَ ژوند دَ پاره ائینه جوړه شوه
ښُکلا ګلونو کښې هر خوا ته راغله
دَ مدینې چې باغیچه جوړه شوه
نمر چې ښکاره دَ مدینه دَ در شو
نوراني هر ځائے هر حصه جوړه شوه
نُور دَ نبي ﷺ سره ښائسته شول ستوري
دَ نُور هر کور کښې یو چینه جوړه شوه
سپورې ښکاره چې دَ نبي ﷺ شو کله
دَ حُسن ښکلے ګلدسته جوړه شوه
هریو فضا شوه معطر په نبي ﷺ
احمده ښکلے هر ذرّه جوړه شوه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قسم دے په دُنیا کښې لوئے مقام دَ مدینې دے
حسین ښکلے صورت ماهِ تمام دَ مدینې دے
مقام دَ مدینې دے دَ هر در نه ډیر اُوچت
مقام دَ مدینې دے هر ګوهر نه ډیر اُوچت

حسين هر يو سحر دے هر ماښام دَ مدينې دے
قسم دے په دُنيا کښې لوئے مقام دَ مدينې دے
مقام دَ مدينې دے له أسمانه ډير اُوچت
مقام دَ مدينې دے عاليشانه ډير اُوچت
ښور شوې هر طرف ته دا اسلام دَ مدينې دے
قسم دے په دُنيا کښې لوئے مقام دَ مدينې دے
مقام دَ مدينې دے ښهٔ عالى اوعاليشان
داوائى په دُنيا کښې ټول صالحه عالمان
امام دَ امامانو لوئې امام دَ مدينې دے
قسم دے په دُنيا کښې لوئے مقام دَ مدينې دے
مقام ئې ډير اُوچت دے داسے وائى پيغمبر ﷺ
مقام ئې ډير اوچت دے اے احمده ! په هر در
هر ځائے کښې په دے وجه احترام دَ مدينے دے
قسم دے په دُنيا کښې لوئے مقام دَ مدينې دے

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

اُوچت له هر أسمانه شان دے شان دَ مدينې
حسين له هر بيان نه دے بيان دَ مدينې
مسکن دَ مصطفىٰ ﷺ دے دَانوارو دَ جهان
مسکن دَ مصطفىٰ ﷺ دے دَنبى أخرزمان ﷺ
په دے وجه اُوچت دے هر مکان دَ مدينې

حسین له هر بیان نه دے بیان دَ مدینې

مسکن دے دَ صدیقؓ او دَ عمرؓ ددې جهان

مسکن دے دَ عثمانؓ او دَ حیدرؓ ددې جهان

په دے وجه ښائسته دے ګلستان دَ مدینې

حسین له هر بیان نه دے بیان دَ مدینې

مسکن دے دَ حسنؓ او دَ حسینؓ ددې دُنیا

مسکن دَ ښکلو ستورو دے دُنیا کښې دَ رڼا

ځکه ښهٔ منوَر دے هر میدان دَ مدینې

حسین له هر بیان نه دے بیان دَ مدینې

مسکن دے اے احمده ! دَ نیکانو صالحانو

مسکن دے ددُنیا دَ لویو لویو عالمانو

ښائسته په هر صفت دے هر انسان دَ مدینې

حسین له هر بیان نه دے بیان دَ مدینې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے دے زمونږه مصطفیٰ ﷺ ښکلے

داسے بل څوك نشته په دُنیا ښکلے

ښکلے دَ هرچانه په دُنیا کښې دے

نشته نشته داسے یو پیدا ښکلے

ښکلے په سیرت سره دُنیا کښې دے

ښکلے په صورت دے مجتبیٰ ﷺ ښکلے

ښکلي دي ډير ښکلي هر صفت سره
ښکلي په صفاتو دي طٰه ﷺ ښکلي
ښکلي پاس قمر نه هغه ښکلي دي
نشته بل څوك دغه شان والله ښکلي
ښکلي ئي اصحابؓ لکه دَ ستورو دي
ښکلي دَ دُنيا ئي هر ادا ښکلي
ښکلي په وينا سره احمده! دي
نشته نشته دا سي يو پيشوا ښکلي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

کار به په دُنيا کښي هميشه زۀ دَ سنت کوُم
تل به دَ الله او دَ رسول ﷺ زۀ اطاعت کوُم
لري به اُوسيږمه دَ شرك نه دَ بدعت نه زۀ
لري به اُوسيږمه دَ هر قسمه نفرت نه زۀ
زۀ به هريو کار په دي دُنيا دَ محبت کوُم
تل به دَ الله او دَ رسول ﷺ زۀ اطاعت کوُم
لري به اُوسيږمه شراب نه په دُنيا کښي زۀ
لري به اُوسيږمه خراب نه په دُنيا کښي زۀ
کار به هميشه دَ هريو در دَ مصلحت کوُم
تل به دَ الله او دَ رسول ﷺ زۀ اطاعت کوُم
لري به اُوسيږمه دَ بدو محفلونو نه

لـــرې بـــه اُوسيـــږمـــه دَ بــدو عـمـلـونـو نــه
نــۀ بــه غـلا غُـلـتـې کـوُمــه نـۀ بـه شرارت کـوُم
تــل بـــه دَ اللّٰـــه او دَ رســول ﷺ زۀ اطــاعــت کـوُم
لـــرې بـــه اُوسيـــږمـــه دَ شــر نــه شـرارت نــه زۀ
لـرې بــه اُوسيـږمــه شيـطان نـه شيـطانت نـه زۀ
نـــۀ بـــه دروغ وائـمـــه او نـــۀ بـــه زۀ غيبـــت کـوُم
تــل بـــه دَ اللّٰـــه او دَ رســول ﷺ زۀ اطــاعــت کـوُم
لـــرې بـــه اُوسيـــږمـــه دَ کـفــر مـحـفلونـو نــه
لـــرې بـــه اُوسيـــږمـــه دَ شــر دَ تـعـويـذونـو نــه
زۀ احـمـد بـــه هـر ځـائـې دَ شيطان مـخالـفـت کـوُم
تــل بـــه دَ اللّٰـــه او دَ رســول ﷺ زۀ اطــاعــت کـوُم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زۀ پــه هـريـو کــار کښې اطـاعـت دَ شـريـعـت کـوُم
کــارهــريــو دُنيــا کښې هـميشـه بـه دَ سـنـت کـوُم
زۀ پـه طـريـقـه دَ پـاك رسـول اللّٰه ﷺ خوشحالـه يم
زۀ پـــوره خبـــر ددغـــې در دَ نُـــور جـــمــــالــــه يـم
زۀ ددغــې لار بـــه پـــه دُنيـــا کښـې تـــل صـفـت کـوُم
کــارهــريــو دُنيــا کښې هـميشـه بـه دَ سـنـت کـوُم
مــاده خـوښـۀ کـړې هـر ويـنـا دَ پـاك رسـول اللّٰه ﷺ
مــاده خـــوښـــۀ کـړې هـر ادا دَ پـاك رسـول اللّٰـه ﷺ

زۀ پــه دغــي وجــے بــه لــه بدونــه نفــرت کــوُم
کــارهــريــو دُنيــا کښــي هميشــه بــه دَ سـنـت کـوُم
مــاده خــوښــه کړے نُـوررنـا دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ دَ در
مــاده خوښـه کـړے هـرښُـکلا دَ مصطفیٰ ﷺ دَ در
دلتــه دغــه ذکــرزۀ پــه نيــت دَ عبــادت کــوُم
کــارهــريــو دُنيــا کښــي هميشــه بــه دَ سـنـت کـوُم
مــادی تـول خـوښ کـړی مـحـفلونـه دَ رسول اللّٰه ﷺ
مــادی تـول خـوښ کـړی چـمـنونـه دَ رسول اللّٰه ﷺ
قــدر پــه دُنيــا کښــي زۀ احـمـد دي نـعـمـت کـوُم
کــارهــريــو دُنيــا کښــي هميشــه بــه دَ سـنـت کـوُم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ســنــت دَ مـحـمـد ﷺ هــريــو انســان دَ پــاره دے
دُنيــا کښــي دغــه نُــور دَ تــول جهــان دَ پــاره دے
دُنيــا کښــي دغــه نُــور دَ هــريــو در دَ پــاره دے
دُنيــا کښــي دغــه نُــور هــريــو بشــر دَ پــاره دے
دا نُــور پــه دي دُنيــا کښــي غــريــب خــان دَ پــاره دے
دُنيــا کښــي دغــه نُــور دَ تــول جهــان دَ پــاره دے
دُنيــا کښــي دغــه نُــور دَ هــر مـحـفـل دَ پـاره دے
دُنيــا کښــي دغــه نُــور دَ ځــان او بــل دَ پــاره دے
دا نُــور ددي دُنيــا هــريــو مــکــان دَ پــاره دے

دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ ټــول جهــان دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ هــر بُــډهــا دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ هــر دانــا دَ پــاره دے
دا نُـــور دَ دي دُنیـــا هـــر يـــو نـــادان دَ پـــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ ټــول جهــان دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ هــر پــادشــاه دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ هــر ګــمــراه دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ مسـلـمــان دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ ټــول جهــان دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دے دا نُــور دَ پــاکســتــان دَ پــاره هــم
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دے دَ مــردان دَ پــاره هــم
احـمـده ! دغـــه نُــور مـــاشـوم اوځـوان دَ پــاره دے
دُنیـــا کښــي دغـــه نُــور دَ ټــول جهــان دَ پــاره دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اسـلام مــيِ ديـن دے ددي ديـن مـخـالـفـت نـۀ منم
کــار دَ بـدعــت نــۀ منم ، بــل شــريـعـت نــۀ منم
ديــن شــريـعـت دَ مـحـمـد رسـول اللّـه ﷺ دے زمـا
نــورانــي نُـور پــه دي دُنیـــا کښـي مـقـتـدا دے زمـا
کــار پــه دُنیـــا کښـي پــه يـو درد شـرارت نــۀ منم
کــار دَ بـدعــت نــۀ منم ، بـل شــريـعـت نــۀ منم

مدحه تعریف دَ نورانی شمس الضحیٰ ﷺ کوُمه
مدحه تعریف دَ مصطفیٰ ﷺ او مجتبیٰ ﷺ کوُمه
دُښمن دَ پاك نبی ﷺ دَ مدحے او صفت نۀ منم
کار دَ بدعت نۀ منم ،بل شریعت نۀ منم

خوښ مې هر کار دَ محمد ﷺ دے قربانیږمه ترے
خوښ مې هر دار دَ محمد ﷺ دے زۀ زاریږمه ترے
زۀ له دے درنه په مخلوق کښې بل اوچت نۀ منم
کار دَ بدعت نۀ منم ،بل شریعت نۀ منم

خوښ مې یاران دَ محمد ﷺ دی دَ دُنیا دَ در
خوښ مې یاران دَ محمد ﷺ دی نُور رڼا دَ در
عالی مخلوق کښې زۀ احمد ترے بل نسبت نۀ منم
کار دَ بدعت نۀ منم ،بل شریعت نۀ منم

★★★★★★

تمت بحمد اللّٰه تعالیٰ وبتوفیقه

ربنا تقبل منا انك انت السمیع العلیم وتب علینا انك انت التواب الرحیم وصلی اللّٰه تعالیٰ علی خیر خلقه محمد وأله واصحابه واهل بیته اجمعین ومن تبعهم باحسان الیٰ یوم الدین ۔ أمین یارب العٰلمین۔

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

# (دويمه برخه)

## حمد باری تعالیٰ

ربَ زمونږه يو دے شريك نۀ لري په ذات کښې

نۀ ئې څوك شريك شته په دُنيا کښې په صفات کښې

نۀ هغه والد دے نۀ ولد هغه بې نيازه دے

نۀ ورسره څوك شته دے شريك په عبادات کښې

هر څۀ نه خبر دے په هر څيز باندې نظر ئې دے

نۀ ئې مددګار شته دَ دُنيا په معاملات کښې

هر ځائے کښې ښۀ اورى دَ هر چا فرياد آواز هغه

ذات ئې پکارېږى دَ دُنيا په مشکلات کښې

هر څۀ دَ هغۀ دى دَ آسمان سره دَ زمکے تول

رنګ په رنګ هغۀ دى پيدا کړى مخلوقات کښې

ژوند او مرګ ئې دواړه په دُنيا کښې پيدا کړى دى

روح ئې پيدا کړے دَ دُنيا په حيوانات کښې

لوئې لوئې ئې نهرونه دريابونه پيدا کړى دى

غرونه پيدا کړى دى هغۀ په جمادات کښې

زۀ به احمد ولے دَ هغۀ ثنا صفت نۀ کووم

هر ځائے پکارېږى په دُنيا کښې سخت حالات کښې

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نشته دے نشته ستا ثانی حبیبه! ﷺ
نورانی نُورئي روحانی حبیبه

ستا دَمقام په لوئي عظمت ګواه دی
ټول آیاتونه قرأنی حبیبه! ﷺ

ستا په انوارو منوَر خلق دی
دلته هم بره آسمانی حبیبه! ﷺ

دَامامانو تاج په سر لرے تۀ
په هرځائے ستا ده سلطانی حبیبه! ﷺ

چې ستا اله ذکر نه بل ذکر کوی
دغه به وِی ئې نادانی حبیبه! ﷺ

ستا نه قربان به خو خو وارے شمه
دا مې جذبه ده ایمانی حبیبه! ﷺ

ددَې دُنیا دَ هر یو در هر ځیز
تا نه قربان زما ځوانی حبیبه! ﷺ

کۀ دا بدن له تا نه زار کړمه زۀ
کمه به وی دا قربانی حبیبه! ﷺ

دَزړۀ سکون دَ پاره دلته کښې ما
احمد ده کړے نعت خوانی حبیبه! ﷺ

*******

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پـه لقـب سـره موصوف شمس الضحیٰ ﷺ دے

یـاد دُنیـا کښـي مـحـمـد رسول اللّٰـه ﷺ دے

پـه لـقـب سـره یـاد شـوي بـره نـمـر دے

یـا قـمـر دَ تـول جهـان رنـا دے

پـه لـقـب سـره یـاد شـوي پـه امـام دے

مـقتـدا دَ هـریـو در پـه دي دُنیـا دے

پـه لـقـب سـره یـاد شـوي پـه امیـن دے

پـه صـادق سـره یـاد شـوي پـه وینـا دے

پـه لـقـب سـره یـا د شـوي پـه یٰسیـن دے

مـزمـل او مـدثـر دے هـم طـٰهٰ ﷺ دے

پـه لـقـب سـره یـاد شـوي اولیـن دے

آخـریـن پـه کـائـنـات دَ انبیـاء ﷺ دے

پـه لـقـب سـره یـاد شـوي پـه رحـمـت دے

دَ سـرسـیـوري پـه دُنیـا کښـي دَ هـرچـا دے

اے احـمـد عـلـی ! کـامـل پـه هـر صفـت دے

مـجـمـوعـه دَ صـفـتـونـو پـه دُنیـا دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نـۀ وینـم رسولـه ! ﷺ ستـا پشان پـه دي ګلونو کښي

نـۀ پـه دغـه زمـکـه کښي او نـۀ پـه آسمانونو کښي

نــۀ وينــم پــه زمکــه دَ دُنيــا پــه ګلستــان کښــې زۀ

نـۀ وينـم يـو ګـل داسـے حسين په ټول جهان کښې زۀ

بهتــريــن راغــلــے ئـي پــه ټولـو صـفتـونـو کښـې

نـۀ وينـم رسـولـه ! ﷺ ستـا پشان په دے ګلونو کښې

نــۀ پــه دغــه زمـکــه کښـې او نـۀ په آسمانونو کښې

نــۀ ويـنـم پــه سترګـو نــۀ ليدلے بـه بل چا وي څوك

ښـکـلے پـه صـورت سره چې ښکلے په ادا وي څوك

داسـے بشــر نشتــه خـورم قسـم پـه جهـانـونو کښـې

نـۀ ويـنـم رسـولـه ! ﷺ ستـا پشـان پـه دې ګلونو کښې

نــۀ پــه دغــه زمـکــه کښـې او نـۀ پـه آسمانونو کښې

نــۀ ويــنــم پـــه سترګـو هـر بشـر دا سـے وينـا کـوی

نــۀ ويــنــم پـــه ستــرګــو دا ويـنـا خلق صـفـا کـوی

داسـے عــالـی نشتـــه دَ دُنيــا پــه نسبتـونـو کښـې

نـۀ وينـم رسـولـه ! ﷺ ستـا پشان په دے ګلونو کښې

نــۀ پــه دغــه زمـکــه کښـې او نـۀ په آسمانونو کښې

نـــۀ ويـنـم پـــه ستـــرګـو دَ احـمـد عـلـی وينـا ده دا

نــۀ ويـنـم پـــه سترګـو دا وينـا ئـې پـه هـرخـوا ده دا

ژونـد څـکــه تـيـرومــه دَ رسـول اللّٰـه ﷺ يـادونو کښې

نـۀ وينـم رسـولـه ! ﷺ ستـا پشـان پـه دې ګلونو کښې

نــۀ پــه دغــه زمـکــه کښـې او نـۀ پـه آسمانونو کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك روان چې دَ نبی ﷺ په طريقه دی
بهترينه دَ دُنيا په هر حصه دی
دَ شيطان دَ شيطانت نه دی محفوظه
عاليشانه دُوی هرخوا په مرتبه دی
دَ هر دردی امان دغه کسان
بهرين ددې دُنيا تول نمونه دی
هر ادا کښې ئې ښکلا ددې جهان ده
رنګانې ددُنيا ددغې شپه دی
دَ سحر ښُکلا دَ دُوی سره ده جوړه
اے احمده! دُوی منونکی دَ کعبه دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نشته دَ رسول ﷺ په شان په ټولو جهانو نو کښې
دابيان ليدلے ما په غټو کتابونو کښې
دا بيان ليکلے دے دُنيا کښې هر امام ولی
دا بيان ليکلے په دُنيا کښې خاص وعام ولی
نشته دَ رسول ﷺ پشان بل څوك په آسمانونو کښې
دابيان ليدلے ما په غټو کتابونو کښې
دا بيان ليکلے په دُنيا کښې صالحانو دے
دا بيان ليکلے په دُنيا کښې عالمانو دے

داسې حسين نشته دَ دُنيا په دې ګلونو کښې
دابيان ليدلې ما په غتو کتابونو کښې
دا بيان ليکلې هر فقيه ددي اُمت دې تول
دا په دې دُنيا کښې بنۀ واضحه حقيقت دې تول
هر صفت سره ممتاز دې دلته صفتونو کښې
دابيان ليدلې ما په غتو کتابونو کښې
دا بيان ليکلې په عرب کښې علماء دې هم
دا بيان ليکلې د دُنيا هر مقتدا دې هم
نشته نشته داسې دَ دُنيا په نعمتونو کښې
دابيان ليدلې ما په غتو کتابونو کښې
دا بيان ليکلې هر عالم ددې عجم دې هم
دا بيان ليکلې عزت منده محترم دې هم
اے احمده ! ياد دې دَ قرآن په آياتونو کښې
دابيان ليدلې ما په غتو کتابونو کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ ژوند په هره لاره نُور سحر دې مبارك شه
سفر دَ مدينې تول منوَر دې مبارك شه
سفر دَ مدينې دې مبارك شۀ دَ جهان
سفر دَ مدينې دې مبارك شۀ عاليشان
دُنيا کښې دَ عزت دغه سفر دې مبارك شۀ

دَژوند په هره لاره نُور سحر دے مبارك شه

سفر دَ مدينې دے دَ انوارو دَ دُنيا

سفر دَ مدينې دے دَ انوارو په هرخوا

سفر دغه دُنيا کښې معطّر دے مبارك شهٔ

دَژوند په هره لاره نُور سحر دے مبارك شه

سفر د مدينې دے خوشبو داره دَ جهان

خبر دے حقيقت نه طلبګاره هر انسان

ديدن دَ مدينې دَ هريو در دے مبارك شهٔ

دَژوند په هره لاره نُور سحر دے مبارك شه

په دے سفر کښې شته دے هم سکون اطمينان

په دے سفر کښې شته دے رحمتونه دَ جهان

دُنيا کښې دا رحمت دَ بحروبر دے مبارك شهٔ

دَژوند په هره لاره نُور سحر دے مبارك شه

قدم په قدم هلته کښې رڼا رڼا رڼا ده

رڼا نه ډکه هلته دَ دُنيا ټوله فضا ده

احمد علی ! ټول نُور دپاس قمر دے مبارك شهٔ

دَژوند په هره لاره نُور سحر دے مبارك شه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زنګ دے دَ زړهٔ نه دَ قرآن په تلاوت لرے کړه

په نُور سنت سره تيرے دَ هر بدعت لرے کړه

لــړے دَ زړۀ نـــه دَ دُنیـا دغــه هــر زنګ لــړے کــړه
لـړے وجـود نـه دَ شیـطـان هر شیطانت زنګ لړے کړه
پــه نُـور ســنــت سره تیـرے دَ هـریـدعـت لـړے کړه
میـنـــه پــه زړۀ کښـيِ دَ سنت دَ مـحـمـد ﷺ راولـه
میـنـه پـه زړۀ کښيِ دَ هرسـاعت دَ محمد ﷺ راولـه
تـورِوالـے زړۀ نـه پـه دُنیـا کښــيِ دَ نفرت لـړے کـړه
پــه نُـور ســنــت سره تیـرے دَ هـریـدعـت لـړے کړه
زړۀ نـــه دے زنګ دَ ګـنـــاهــونو دَ دُنیـا لــړے کــړه
زړۀ نـه دے زنګ دَ ګـنـاهـونـو ښـۀ صـفـا لـړے کړه
دَ زړۀ نـه زنګ دے پـه دُنیـا کښيِ دَ لـعنت لړے کړه
پــه نُـور ســنــت سره تیـرے دَ هـریـدعـت لـړے کړه
کیـنـه حسـد پـه زړۀ کښيِ پـاتـے دلـتـه ستا چيِ نشي
کیـنـه حسـد پـه زړۀ کښيِ پـاتـے پـه دُنیا چيِ نشي
زنګ دَ خپـل زړۀ نـه پــه دُنیـــا دَعـداوت لـړے کـړه
پــه نُـور ســنــت سره تیـرے دَ هـریـدعـت لـړے کړه
زنګ دَ دروغـو ستـا پـه زړۀ بـانديِ چيِ پاتـے نشي
زنګ دَ دروغـو ستـا پـه زړۀ بـانديِ چيِ پاتـے نشي
زنګ دَ دروغــو دَ دُنیـــا پـــه صـداقــت لــړے کـړه
پــه نُـور ســنــت سره تیـرے دَ هـریـدعـت لـړے کړه
زنګ دَ شـرابــو خپـل وجـود نـه پـه دُنیا لـړے کړه

زنګ دَ شرابو تول وجود نه ښۀ صفا لرے کړه
زنګ دَ خپل زړۀ نه دَ هر سود او دَ غیبت لرے کړه
په نُور سنت سره تیرے دَ هر بدعت لرے کړه
زنګ لرے زړۀ نه کړه دَ شرك په نُور ایمان سره تۀ
زنګ لرے زړۀ نه کړه دَ کفر دغه شان سره تۀ
احمده ! زړۀ نه هر یو زنګ دے دا ساعت لرے کړه
په نُور سنت سره تیرے دَ هر بدعت لرے کړه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چا چې نورانی ښار دَ رسول الله ﷺ لیدلے دے
ښکلے دے ډیر ښکلے په انوارو هغه ښکلے دے
چا چې دی لیدلی محفلونه دَ رسول الله ﷺ
چا چې دی لیدلی چمنونه دَ رسول الله ﷺ
نُور دَ کامیابے ئې په جهان باندې موندلے دے
ښکلے دے ډیر ښکلے په انوارو هغه ښکلے دے
څوك چې مدینې ته حاضر شوی دی دیدن لره
دۀ انوار اغستی په دُنیا کښې خپل بدن لره
څوك چې دغې در ته دلته یو وارے ورغلے دے
ښکلے دے ډیر ښکلے په انوارو هغه ښکلے دے
چا چې خوښه کړے طریقه دَ پاك نبی ﷺ ښکلے
چا چې خوښه کړے طریقه دَ مدنی ﷺ ښکلے

دۀ سـره ښـائستــه د دۀ دَ کـور سـره هم کـلـے دے

ښـکـلـے دے ډیر ښـکـلـے په انوارو هغه ښکلے دے

څـوك چـې روان شـوی دی احـمـده ! دَ طـهٔ ﷺ پـه لار

څـوك چـې روان شـوی دی دُنیـا کښې دَ رڼـا پـه لار

حُسن پـه تـقـدیـر کښـې د دۀ رَبّ دۀ لـه لیکلے دے

ښـکـلـے دے ډیر ښـکـلـے په انوارو هغه ښکلے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښــائستـــهٔ دے هــریــو در دَ مــدیـنـې رڼـا رڼـا

ښــائستـــهٔ دے پیــغـمبــر ﷺ دَ مدینـې رڼا رڼا

بـل نشته په جهان کښې داسے ښـکلے په صورت

ښــائستـــهٔ دے نُــور بشــر دَ مـدیـنـې رڼـا رڼـا

ښــائستـــهٔ دے پیــغـمبــر ﷺ دَ مدینـې رڼا رڼا

حسیــن دے لاثــانــی هــغــهٔ یـاد شوے پـه صـفت

حسیــن دے پــاس قــمــر دَمـدیـنـې رڼـا رڼـا

ښــائستـــهٔ دے پیــغـمبــر ﷺ دَ مدینـې رڼا رڼا

مــحـبــوب دے پـــه دُنیــا دَمـلائیـکـو دَ جهــان

رڼـــا دے مــنــوَر دَ مــدیــنـــې رڼـا رڼـــا

ښــائستـــهٔ دے پیــغـمبــر ﷺ دَ مدینـې رڼا رڼا

مــحـبــوب دَرَبّ اکبـــر دے اے احـمــده ! دَ جهــان

حسیــن دے ښــائستـــهٔ نـمــر دَمـدیـنـې رڼـا رڼـا

ښائسته دے پیغمبر ﷺ دَ مدینې رڼا رڼا

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

باب چې دَنُور او دَ سنت راشی

هلته به بدعت نه به نفرت راشی

هلته کښې نُور به دَ سنت نهٔ مومے

کوم ځائے چې ذکر دَ بدعت راشی

هلته کښې دین دَ مصطفیٰ ﷺ به نهٔ وی

شیطان چې کله شیطانت راشی

هلته انوار دَ محمد ﷺ به نهٔ مومے

چرته سنت نه چې نفرت راشی

هلته بښکلا به دَ سنت نهٔ مومے

کوم ځائے چې دین نه بغاوت راشی

احمده! هر څهٔ په سنت ښکلی دی

پس له سنت نه شریعت راشی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اللّٰه ئې خپل محبوب دَ ټول جهان ﷺ یادوی

مخلوق ئې په نبی آخرزمان ﷺ یادوی

مخلوق ئې یادوی په مزمل او مدثر ﷺ

مخلوق ئې یادوی دَ رهبرانو په رهبر ﷺ

مخلوق ئې د دُنیا دَ ‌ډر سلطان ﷺ یادوی

مخلوق ئې په نبي آخرزمان ﷺ يادوي
مخلوق ئې دَيسين په لقب دلته يادوي
مخلوق ئې دَامين په لقب دلته يادوي
صادق هغه دُنيا کښې هر انسان يادوي
مخلوق ئې په نبي آخرزمان ﷺ يادوي

مخلوق ئې يادوي په اولين سره دُنيا کښې
مخلوق ئې يادوي په آخرين سره دُنيا کښې
دُنيا کښې بهترين ئې عاليشان يادوي
مخلوق ئې په نبي آخرزمان ﷺ يادوي

مخلوق ئې يادوي دَ اماما نو په امام
مخلوق ئې يادوي هم په لقب خير الانام ﷺ
دُنيا کښې ئې دَ ربّ فضل احسان يادوي
مخلوق ئې په نبي آخرزمان ﷺ يادوي

مخلوق ئې په شمس الضحیٰ ﷺ هر وخت يادوي
مخلوق ئې په بدرالدجیٰ ﷺ هر وخت يادوي
احمد علي رښا ئې دَ آسمان يادوي
مخلوق ئې په نبي آخرزمان ﷺ يادوي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لري دُنيا کښې ښهٔ بيشميره صفتونه
زار کړمه زار تر رينه زهٔ تول جهانونه

تاج دَ عزت ئې دے په سر

تاج دَ عظمت ئې دے په سر

خلقه شرمیږی ئې دَ حُسن نه ګلونه

زار کړمه زار ترینه زهٔ ټول جهانونه

نوراني نور دے دَ هر در

لقب ئې دے خیر البشر ﷺ

دا جهان ټول کوی هم داسې بیانونه

زار کړمه زار ترینه زهٔ ټول جهانونه

پاس دَ دُنیا دے بره نمر ﷺ

ښائسته حسین لکه قمر ﷺ

په هریو درتري تقسیمیږی رحمتونه

زار کړمه زار ترینه زهٔ ټول جهانونه

ښُکلا ښُکلا ده دَ سحر

احمده! نُور دے دَ نظر

یادئې دُنیا کښې ختموی دَ زړهٔ غمونه

زار کړمه زار ترینه زهٔ ټول جهانونه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر یو کار دَ سنت ډیر لری ثواب

دا رښا ده دَ غریب او دَ نواب

پته دے کښې دَ رسول اللّٰه ﷺ رضا ده

دا ښُکلا ده په دُنیا دَ هریو باب
دا ښُکلا ده دَ انسان دَ هریو در
داسې وائی په دُنیا کښې هر کتاب
دا عزت دے دَ محشر په لوئې میدان
دا یو ډهال دے دَ محشر دَ هر عذاب
نیك دے نیك که په سنت باندې عامل دے
اسانتیا ده په محشر کښې دَ حساب
اے احمد علی ! سنت نه چې وی لرے
ورته وائی ټول نیکان خلق خراب

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته دي دُنیا هریو مکان دے په تا ﷺ
ښائسته اے پاك رسوله! ﷺ هر اسمان دے په تا ﷺ
ښائسته هریو چمن دے دَ دُنیا په تا سره
ښائسته هریو وطن دے دَ دُنیا په تا سره
ښائسته ددي دُنیا هر ګلستان دے په تا
ښائسته اے پاك رسوله! ﷺ هر اسمان دے په تا ﷺ
ښائسته دی تا سره دغه ګلونه دَ جهان
ښائسته دی تا سره ټول محفلونه دَ جهان
ښائسته ښکلے حسین دا ټول جهان دے په تا ﷺ
ښائسته اے پاك رسوله! ﷺ هر اسمان دے په تا ﷺ

ښـــائسـتـــۀ پـــه تـــاسـره دے هـر بشـر ددي جهـان

ښـــائسـتـــه پـــه تـاسـره دے دَ دُنيـا هـر مسـلـمـان

ښـــائسـتـــۀ ددي دُنيـــا هـريـو بيـان دے پـــه تـا ﷺ

ښـائسـتـه اے پاك رسوله! ﷺ هر اسمان دے په تا ﷺ

ښـــائسـتـــۀ پـــه تـــاسـره ده هــره لاره دَجهـــان

ښـــائسـتـــۀ هـم تـــاسـره دے دَ کـلـمـے سـره أذان

ښـــائسـتـــه ددي دُنيـــا هـــريـــو اعـلان دے پـــه تـــا

ښـائسـتـه اے پاك رسوله! ﷺ هر اسمان دے په تا ﷺ

ښـــائسـتـــه پـــه تـــاسـره دے هـريـــو شـعـر دَاحـمـد

تـــو ښـــۀ دا آخـــرت ده دا تـــو ښـــه ده دَلـــحـــد

کـــامـــل دَ مسلمـــان دغـــه ايـمـان دے پـــه تـــا ﷺ

ښـائسـتـه اے پاك رسوله! ﷺ هر اسمان دے په تا ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

انـــوار دَ مـحـمـد ﷺ پـــه مـديـنـه کـښـي دي پـراتـه

انوار دَ مـحـمـد ﷺ پـه هـر کـوخـۀ کـښـي دي پـراتـه

انـــوار دَ مـحـمـد ﷺ دي دَ دُنيـا پـه هـر اسـمـان کـښـي

انـــوار دَ مـحـمـد ﷺ دي بـــره بـــره لامـکـان کـښـي

انـــوار ئـــي دَ جهـــان پـــه حـصـه کـښـي دي پـــراتـــه

انـــوار دَ مـحـمـد ﷺ پـــه مـديـنـه کـښـي دي پـراتـه

انوار دَ محمد ﷺ دي پـه عـرب او پـۀ عـجـم کـښـي

انوار دَ محمد ﷺ دی هر طرف ته تول عالم کښې
انوار دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ په شپه کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ په مدينه کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ دی په ځنګل او په صحرا کښې
انوار دَ محمد ﷺ دی دَ دُنيا هره رڼا کښې
انوار ئې دَ دُنيا هره ذرَه کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ په مدينه کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ لري په زړۀ کښې مسلمان
انوار دَ محمد ﷺ دی دَ فلاح پوره سامان
انوار دَ مصطفیٰ ﷺ په تذکره کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ په مدينه کښې دی پراته
انوار ئې محفلونو کښې پراتۀ دَ مدينې دی
انوار ئې چمنونو کښې پراته دَ مدينې دی
احمده! تول انوار ئې په روضه کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ په مدينه کښې دی پراته

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ځان دَ هر بدعت نه په دُنيا کښې تويه ګار کړه
لاړشۀ دَ سنت په لاره ځان په دغه لار کړه
ځان په دغه لار کړه دغه لاره دَ نيکانو ده
ځان په دغه لار کړه دغه لار دَ امامانو ده

ځان دَ پاك رسول ﷺ دَ هريو حکم تابعدار کړه
لاړ شـــۀ دَ سـنـت پـه لاره ځـان پـه دغـه لار کړه
ځـان پـه دغـه لار کړه دغـه لاره دَ صـديـق؆ ده
لاره پـه دُنيـا کښـي بهتـريـنـه دَ عتيـق؆ ده
هـريـو څيـز دُنيـا کښـي ددې لارې نـه خپـل زار کړه
لاړ شـــۀ دَ سـنـت پـه لاره ځـان پـه دغـه لار کړه
ځـان پـه دغـه لاره کـړه دا لاره دَ عـمـر؆ ده هـم
لاره دَ عثـمـان؆ ده دغـه لاره دَ حيـدر؆ ده هـم
ځـان ددغـي ډلـے نـه دُنيـا کښـي خبـردار کـړه
لاړ شـــۀ دَ سـنـت پـه لاره ځـان پـه دغـه لار کړه
لاره دَ بـلال؆ ده دغـه لاره دَ حسَـان؆ ده
لاره عـزتـمـنـده ده دا لاره عـاليشـان ده
ويـښ وُسـه دُنيـا کښـي دَ غـفلت نـه ځان بيدار کـړه
لاړ شـــۀ دَ سـنـت پـه لاره ځـان پـه دغـه لار کړه
لاره دغـه لاره پـه دُنيـا دَ عـالـمـانـو ده
لاره دغـه لاره پـه دُنيـا دَ متـقيـانـو ده
خـوښـه طـريـقـه دَ مـحـمـد خيـر الابرار ﷺ کـړه
لاړ شـــۀ دَ سـنـت پـه لاره ځـان پـه دغـه لار کړه
لاره دَ اصـحـابـو؆ تـولـو يـاده پـه دُنيـا کښـي ده
ځـکـه دا ښـائسـتـۀ ده هـم آبـاده پـه دُنيـا کښـي ده

ځان پـه حقيقت کښې پـه دے کار سره ديندار کړه
لاړ شــۀ دَ سـنـت پــه لاره ځـان پــه دغــه لار کـړه
لاره اے احـمـدعلی ! ښـۀ نيغـه پـه دُنيا کښې ده
لاره نيـغــــه لاره دَ دُنيــا پـــــه هــر ادا کښــې ده
ځـان هـر ځـائـے مـلـګرې دَدې نـُور او دَانـوار کړه
لاړ شــۀ دَ سـنـت پــه لاره ځـان پــه دغــه لار کـړه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مـخ دَوَالـضُّـحـٰی دے دَ نبيــانـو دَ سـردار ﷺ
ښـکلے دے ښائستۀ دے ډير حسين دے حسندار ﷺ
هـر صـفـت کـامـل لـری ښائستـۀ ددې جهان هـغـه
هـر صـفـت کـامـل لـری ښائستۀ دَ هر مکان هغه
يـــاد دَ مـديـنـــې مـنــورې دے تـــاجـدار ﷺ
ښـکلے دے ښائستۀ دے ډير حسين دے حسندار ﷺ
شافـع مـحشر ﷺ دے شفاعت ئې دَ محشر دے حق
شافـع مـحشر ﷺ دے دا عزت ئې دَ محشر دے حق
فــضــل وکــرم دلتـــه پـــه دُنيــا دے دَ هــر لار
ښـکلے دے ښائستۀ دے ډير حسين دے حسندار ﷺ
ســاقــی کــوثــر ﷺ دے ورتــه وائـی دَ دُنيـا خلق
ساقـی کـوثر ﷺ دے ورتـه وائی پـه هرخوا خلق
يــاد پــه دې صـفـت سره دے دلتــه کښې بـار بـار

ښکلے دے ښائسته دے ډیر حسین دے حسندار ﷺ

حُسن دَ جهان ورته وئیلے په دُنیا کښې شي
حُسن دَ اسمان وئیلے په دُنیا کښې شي
هر ځائے کښې علاج دے دَ رنځور او دَ بیمار
ښکلے دے ښائسته دے ډیر حسین دے حسندار ﷺ

وائي اطمینان دے دَ مخلوق دغه بیان دے هم
وائي اطمینان دے ددې زمکے او اسمان دے هم
یاد په کائنات کښې دے سکون دَ هردیار
ښکلے دے ښائسته دے ډیر حسین دے حسندار ﷺ

حُسن دَ ګلونو ورته وائي دَ دُنیا خلق
حُسن دَ باغانو ورته وائي دَ دُنیا خلق
دغه شان حسین ئې دے احمده! هر ګفتار
ښکلے دے ښائسته دے ډیر حسین دے حسندار ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چې باغي دَ تاجدار ﷺ شو نو پرے څۀ
چې روان په کړه لار شو نو پرے څۀ
دَ نبي ﷺ سره چې دلته وفا نۀ کړي
کۀ دَ هر چا تابعدار شو نو پرے څۀ
دَ رسول الله ﷺ چې نۀ مني نُو غرق دے
دَ شیطان چې وفادار شو نو پرے څۀ

کار چې دلته دَ بدعت کوی په مینه
په ظاهره کۀ هوښیار شونو پرے څۀ
دَ خیر طمع دَهغۀ نه نۀ شے کولے
چې د دین سنت غدّار شونو پرے څۀ
دَ شیطان ملګرې هریو بدعتی وی
په ظاهر کۀ حُسندار شونو پرے څۀ
بې ایمانه ایماندار نۀ وی احمده!
په ظاهر کۀ ایماندار شونو پرے څۀ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دلته څوك چې کړی سنت او بدعت ګڼی وړ
لکه څوك چې کړی رحمت او لعنت ګڼی وړ
دَ ازغو او دَ ګلونو کار جُدا دے
داسے نشته چې دَ دوی شی عادت ګڼی وړ
زهر زهروی ګبین به نۀ شی کله
هم دَ زهرو او د ګبین دے فطرت ګڼی وړ
دوست وی دوست هغه دښمن ګنړلے نۀ شی
دا کیدے نۀ شی چې نرم سخت شی ګڼی وړ
هریو څیز دَ جهان بیل په خپل صفت دے
نۀ ده نۀ ده چې عزت شی ذلت ګڼی وړ
اے احمده! دَ بدعت لاره جُدا ده

مقبول نۀ دے په دُنيا کښې سنت ګډوډ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تل په ما زما دَربّ مهربانی ده
چې نصيب ئې زما کړے نعت خوانی ده

هر يو غم له دَجهان دغه کافی ده
هر يو غم له دَانسان دغه کافی ده
هم په دے سره هرځائے کښې اسانی ده
چې نصيب ئې زما کړے نعت خوانی ده

هر بشر له سکون دے دَ هر در
دا رڼا ده دَدُنيا د دغې نمر
تذکره دغه دُنيا کښې نورانی ده
چې نصيب ئې زما کړے نعت خوانی ده

دا خوشبو دَ هر محفل ده دَجهان
دا خوشبو ده په دُنيا دَ هر اسمان
تذکره دا بهترينه لاثانی ده
چې نصيب ئې زما کړے نعت خوانی ده

تذکره دَ هر بدن دا دَسکون ده
تذکره دَ هر وطن دا دَسکون ده
دواګانو کښې دوا ده روحانی ده
چې نصيب ئې زما کړے نعت خوانی ده

وقف کړے ما احمد ورله دا ژوند دے
ځکه ژوند مې دَ دُنيا دا قدرمند دے
وقف کړے ما هم دے لره ځواني ده
چې نصيب ئې زما کړے نعت خواني ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بهترين دے دَ سنت دَ رنګ لباس
په اساسو کښې دَ دين دے لوئے اساس
شيطانان ئې دښمنان ددې جهان دی
لوئے دښمن ئې په دُنيا کښې دے خنّاس
هر مشرك سړی ته بد ښکاري دا کار
بد ګڼړي هر بدعتی دغه په لاس
رنګ په رنګ شياطين شته ئې دُښمنان
اے احمده! څۀ جنات دی څه دي ناس

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نعت خواني له دے پکار ښائسته آواز
ځکه دغه دَ نبي ﷺ دے لوئے اعزاز
نعت خواني ده عبادت په دې جهان
نعت خواني ده سعادت په دې جهان
بهترين دے دغه کار په هر يو ساز
ځکه دغه دَ نبي ﷺ دے لوئے اعزاز

نعت خوانی ده نُور رڼا دَ هر محفل
تذکره ده دا دَ خاتم الرُسل ﷺ
تل پکار ده نعت خوانی په ښۀ انداز
ځکه دغه دَ نبی ﷺ دے لوئے اعزاز
نعت خوانی کښې وی صفت دَمحمد ﷺ
نعت خوانی کښې وی سیرت دَ محمد ﷺ
ښکاره کیږی په دے نُور سره هر راز
ځکه دغه دَ نبی ﷺ دے لوئے اعزاز
نعت خوانی کښې تذکره وی دَ سنت
اے احمده! نُور دے نُور دَ شریعت
مینه مینه دلته نۀ وی دَ مجاز
ځکه دغه دَ نبی ﷺ دے لوئے اعزاز

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سنت ده دلته یو ډیوه د دي ژوند
ښائسته دُنیا کښې ده حصه د دي ژوند
بله ډیوه ددي دُنیا دَ دړ ده
رڼا په دي ده هره شپه ددي ژوند
رڼا دا زړونه ددُنیا په دے دی
رڼا په دي ده هر ذرَه ددي ژوند
رڼا عرب کښی په عجم کښې دا ده

قسم دے ده يو ائينه ددې ژوند

رڼا تيرو کښې دَ دُنيا دَ درده

په دې هرڅيز دے تول ښائستۀ ددې ژوند

نشته احمده! يو رڼا ترے بله

په دې ده دلته کښې رُتبه ددې ژوند

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چې تابع دَ پاك رسول ﷺ دَ گفتار تۀ شوے

حقيقت کښې دَ نبی ﷺ پيروکار تۀ شوے

چې تابع ددغې نُور په دې جهان شوے

حقيقت کښې نورانی په انوار تۀ شوے

چې تابع ددغې حُسن په جهان شوے

په دُنيا کښې دَ دُنيا حسندار تۀ شوے

چې تابع ددغې عطرو دَ جهان شوے

معطَره ددُنيا په گلزار تۀ شوے

چې تابع دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ دَ آل شوے

عزتمنده دَ دُنيا په دربار تۀ شوے

چې تابع شوے دَ اصحابوؓ دَ رسول

دَ دُنيا دَ پاره سپوري بهار تۀ شوے

چې تابع دَ دغې در دَ ازواج تۀ شوے

اے احمده! په دُنيا کښې هوښيار تۀ شوے

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنيا کښې چا رڼا چې دَ سنَت موندلے ده
قسم دے دهٔ رڼا دَ شريعت موندلے ده
رڼا دَ شريعت ده دا رڼا ده دَ سنَت
رڼا دَ هر يو زړهٔ ده دا رڼا دَ شريعت
قسم دے دا رڼا ئې دَ عزت موندلے ده
قسم دے دهٔ رڼا دَ شريعت موندلے ده
رڼا دَ هدايت ده دا رڼا دَ شريعت
رڼا دَ سعادت ده دا رڼا دَ شريعت
قسم دے دهٔ ښُکلا په حقيقت موندلے ده
قسم دے دهٔ رڼا دَ شريعت موندلے ده
ښُکلا دَ هر وطن ده دا ښُکلا دَ هر چمن
رڼا دَ هر وطن ده دا رڼا دَ هر چمن
خوشبوئې په دُنيا کښې هر ساعت موندلے ده
قسم دے دهٔ رڼا دَ شريعت موندلے ده
ښُکلا دَ اوليا ده دا ښُکلا دَ علماء
ښُکلا ده په دُنيا کښې اے احمده! دَ هر چا
ښُکلا چې دلته چا دَ پاك حضرت ﷺ موندلے ده
قسم دے دهٔ رڼا دَ شريعت موندلے ده

★★★★★

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رُتبه ئي چې دُنيا کښې دَ عزت مونډلې ده
قسم دې دا په نُور ئې دَ سنت مونډلې ده
رُتبه ئي چې مونډلې دَ عزت او دَ عظمت
رُتبه ئي چې مونډلې قدرمنده هر ساعت
رُتبه ئي دَ نبي ﷺ په اطاعت مونډلې ده
قسم دې دا په نُور ئې دَ سنت مونډلې ده
رُتبه ئي ده مونډلې په هر ځائے چې شۀ اوچته
خبر دې مسلمان ئې په دُنيا کښې دَ برکته
رُتبه ئي دَ نبي ﷺ په محبت مونډلې ده
قسم دې دا په نُور ئې دَ سنت مونډلې ده
رُتبه ئي چې مونډلې دَ آسمان په شان اُوچته
رُتبه ئي چې مونډلې لامکان په شان اُوچته
رُتبه ئي دَ نبي ﷺ په لوئې نسبت مونډلې ده
قسم دې دا په نُور ئې دَ سنت مونډلې ده
رُتبه ئي چې مونډلې دَ لوئې غر پشان اُوچته
رُتبه ئي چې مونډلې رڼا نمر پشان اُوچته
رُتبه ئي دَ نبي ﷺ په شريعت مونډلې ده
قسم دې دا په نُور ئې دَ سنت مونډلې ده
رُتبه ئي چې مونډلې دَ قمر پشان روښانه

احمد وائي دُنيا کښې بهترينه هر چانه
قسم دے دَ نبي ﷺ ئي په نسبت موندلے ده
قسم دے دا په نُور ئي دَ سنت موندلے ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنيا کښې چا چې دلته کښې روضه ليدلے ده
قسم دے دَ جنت ئي يو ټکړه ليدلے ده
دُنيا کښې چا ليدلے چې دے در دَمصطفیٰ ﷺ
دُنيا کښې چا ليدے چې دے در دغه رڼا
دَ حُسن ئي دُنيا کښې ګلدسته ليدے ده
قسم دے دَ جنت ئي يو ټکړه ليدلے ده
دُنيا کښې چا ليدلے چې چمن دَ پاك نبي ﷺ
دُنيا کښې چا ليدلے چې وطن دَ پاك نبي ﷺ
دَ حُسن ئي ښائسته يو نمونه ليدلے ده
قسم دے دَ جنت ئي يو ټکړه ليدلے ده
دُنيا کښې چا ليدلے چې بهار دَ محمد ﷺ
دُنيا کښې چا ليدلے چې دربار دَ محمد ﷺ
رڼا ئي دَ دُنيا دَ در يو شپه ليدلے ده
قسم دے دَ جنت ئي يو ټکړه ليدلے ده
دُنيا کښې چا ليدلے چې دے در دَ مزمل ﷺ
حُسن ته نۀ رسيږي بره نمر د مزمل ﷺ

دُنیا کښې دَ رښائي یو چینه لیدلے ده
قسم دے دَ جنت ئي یو ټکړه لیدلے ده
لیدلے چا چې دلته کښې ګلزار دے دَ احمد ﷺ
وریږی هغه ځائے کښې رحمتونه دَ احمد
احمده ! دَ صفات ئي مجموعه لیدلے ده
قسم دے دَ جنت ئي یو ټکړه لیدلے ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رښا دَ هدایت ده چا چې دا موندلے ده
رښا چې دَ سنت دلته کښې چا موندلے ده
رښا ده دَ سنت دَ هر یو کور کلی دَ پاره
رښا ده دَ سنت دَ هر یو تور شکلی دَ پاره
دُنیا کښې دا رښا ده ، اولیاء موندلے ده
رښا دَ هدایت ده چا چې دا موندلے ده
رښا ده دَ سنت دَ هر محفل دَدې دُنیا
رښا ده دَ سنت دَ هر منزل ددې دُنیا
شُکلا ده دغه ټوله ، علماء موندلے ده
رښا دَ هدایت ده چا چې دا موندلے ده
رښا ده دَ سنت هر یو بشر لره دَ دُنیا
رښا ده دَ دُنیا هر یو رهبر لره دَ دُنیا
دُنیا کښې دا نیکانو په هرخوا موندلے ده

رڼا دَ هدايت ده چا چې دا موندلے ده

رڼا ده دَ سنت دغه رڼا دَ هرې لار

رڼا ده دَ سنت وائى احمد دغه په جار

قسم دے دا رڼا ده دلته ما موندلے ده

رڼا دَ هدايت ده چا چې دا موندلے ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خبره چا چې دلته دَنبى ﷺ منلے ده

ښائستۀ دے چې ئې دغه ابدى منلے ده

خبره ښۀ کامله په دُنيا دَ سعادت ده

خبره ښۀ کامله په دُنيا دَ هدايت ده

دُنيا کښې ئې خبره هر ولى منلے ده

ښائستۀ دے چې ئې دغه ابدى منلے ده

خبره په دُنيا کښې دَ آخر دَ نُور جمال ده

خبره په دُنيا کښې ټوله دغه دَ کمال ده

خبره هريو نيك دَ هاشمى ﷺ منلے ده

ښائستۀ دے چې ئې دغه ابدى منلے ده

خبره په دُنيا کښې دَ فلاح دَ هر انسان ده

خبره په دُنيا کښې دَ فلاح دَ ټول جهان ده

خبره دَنبى ﷺ ښۀ امتى منلے ده

ښائستۀ دے چې ئې دغه ابدى منلے ده

خبـره پــه دُنیــا کښــې تــولــه دغــه دَ رنــا ده
احــمــد عــلــی ! خبــره دَ نبــی ﷺ دَ نــور ادا ده
خبــره هــر مــؤمــن دَ مــدنــی مــنــلــے ده
ښــائستـهٔ دے چــې ئــې دغــه ابــدی منــلــے ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے مدینه ده داسے نښته په ښارونو کښې
نښته نښته نښته داسے ګل په دے ګلونو کښې
دلته جمع شوے دَ دُنیا دَ در دے تول جمال
دلته جمع شوے دَ دُنیا دے هریو لوئے کمال
ذکر ئې راځی ښهٔ په اعلاؤ صفتونو کښې
نښته نښته نښته داسے ګل په دے ګلونو کښې
هر عقیدت مند سړے ددغې در میلمه دے نن
هریو قدرمند سړے ددغې در میلمه دے نن
ذکر ئې راغلے دَ هرچا په تعریفونو کښې
نښته نښته نښته داسے ګل په دے ګلونو کښې
سوچ نه ده اُوچته مرتبه ئې دَ دُنیا دَ در
سوچ نه ده اوچته تذکره ئې دَ دُنیا د در
نښته نښته نښته دغه شان په چمنونو کښې
نښته نښته نښته داسے ګل په دے ګلونو کښې
داسے یاده کړے ده نیکانو صالحانو تل

داسې يـاده کـړے اے احـمـده ! عـالـمـانو تـل

نشتـه نشتـه داسې دَ دُنيـا پـه مثـالونو کښې

نشتـه نشتـه نشتـه داسې ګل په دے ګلونو کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښـکـلـے مـديـنـه دَ مـحـمـد خيـرالانـام ﷺ ده

دغـه بهتـريـنـه دَ دُنيـا پـه هـر مـقـام ده

دغـه بهتـريـنـه پـه دُنيـا کښـې دَ هـردرنـه ده

دغـه بهتـريـنـه پـه دُنيـا کښې هر ګوهرنـه ده

ښـهٔ ښـائستـهٔ دُنيـا کښې دَ دُنيـا پـه هر کلام ده

دغـه بهتـريـنـه دَ دُنيـا پـه هـر مـقـام ده

ښـکـلـے ده ښائستـهٔ ده ښـهٔ حسينـه دَ دُنيا دغـه

ښـکلـے ده ښائستـهٔ ده ښهٔ حسينه په هرخوا دغـه

يـاده بهتـريـنـه دَ دُنيـا پـه هـر يـو ګـام ده

دغـه بهتـريـنـه دَ دُنيـا پـه هـر مـقـام ده

ښـکـلـے ده ښـائستـهٔ لـکـه دَ ګل ګلاب پشـان

ښـکـلـے ده ښـائستـهٔ لـکـه رڼا أفتـاب پشـان

دغـه خـوښـه کړے پـه دُنيا کښې خاص وعام ده

دغـه بهتـريـنـه دَ دُنيـا پـه هـر مـقـام ده

ښـکـلـے ده ښائستـهٔ حسينـه دغـه دَ قمر پشان

وائـی احـمـد وائـی دغـه ښـکلـے ده سحر پشـان

دغه ښائسته شو دَ نبیانو په امام ﷺ ده
دغه بهترینه دَ دُنیا په هر مقام ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے مدینه په دے دُنیا کښې دَ جهان ده
دغه عزتمنده په نبی آخرزمان ﷺ ده
دغه عزتمنده ده دُنیا کښې په هر در
ښکلے ده ښائسته دغې دُنیا کښې سراسر
دا لکه ښائسته ددغی ګل د ګلستان ده
دغه عزتمنده په نبی آخرزمان ﷺ ده
دغه ده ښائسته دَ کائنات په هر صفت
دغه ده ښائسته په دے دُنیا لکه جنت
دغه نورانی ددې دُنیا په هر مکان ده
دغه عزتمنده په نبی آخرزمان ﷺ ده
دغه خوشبوداره ده ښائسته ده په رسول ﷺ
ډکه له انواره ده ښائسته ده په رسول ﷺ
دغې کښې ښکلا دَ انواراتو دَ قرآن ده
دغه عزتمنده په نبی آخرزمان ﷺ ده
ښکلے ده ښهٔ ښکلے داسے وائی هر بشر
وائی وائی وائی دا احمد ښهٔ مختصر
دا خلاصه دُنیا کښې ددُنیا دَ ښهٔ بیان ده

دغــه عــزتــمــنــده پــه نبــی اٰخــرزمــان ﷺ ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُــور دَ مــحــمــد رســول اللّٰــه ﷺ نُور دَ اسلام دے
دغــه نُــور بــائستــۀ دَ کــائـنــات پــه هــر مقام دے
نُــور دَ شــریــعــت دے نُور دَ سیَدالــورٰی ﷺ زمــونــږ
نُــور دَ هــرســنــت دے نُور دَ سیَدالــورٰی ﷺ زمــونــږ
دغــه دَ اللّٰــه پــه مــونـــږه دلتــه کښــي انعــام دے
دغــه نُــور بــائستــۀ دَ کــائـنــات پــه هــر مقام دے
نُــور دَ هــر تــورتــم دَ پــاره نُور دا پــه دُنیــا کښــي دے
نُــور عــرب عــجــم دَ پــاره نور دا پــه هــر خوا کښــي دے
نُــور پــه دے دُنیــا کښــي هــر صــفــت ســره تــمام دے
دغــه نُــور بــائستــۀ دَ کــائـنــات پــه هــر مقام دے
نُــور دَ اســمـــانــونــو هــم دے نُــور دَ لامــکـــان بــره
نُــور دَ جـهـــانــونــو نــور دے نــور دَ هــر ذیشــان بــره
نُــور پــه کــائـنــات کښــي دغــه نُــور دَ حق پیغام دے
دغــه نُــور بــائستــۀ دَ کــائـنــات پــه هــر مقام دے
نُــور دا دَمــردان دَ پـــاره نــور هــریــو مــکـــان لــره
وائـــی احــمــد وائی دغــه نُور دے هــر انســان لــره
نُــور ســـره تــړلــے دَ رســول اللّٰــه ﷺ کــلام دے
دغــه نُــور بــائستــۀ دَ کــائـنــات پــه هــر مقام دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـولـو مـخـلـوقــاتـو کښـې اُوچـت لـرې مـقـام
ډيــر دے عـــاليشـــانـــه دَ نبيـــانـــو دے امــام ﷺ
ډيــر دے عــاليشــانــه دَ نبيانــو دے افسـر ﷺ هغـه
ډيــر دے عــاليشــانــه عزتـمـنده مـنوَر ﷺ هغـه
نُــور دے پـــه دُنيـــا کښـــې دَ دُنيـــا دَدر تـمـــام
ډيــر دے عـــاليشـــانـــه دَ نبيـــانـــو دے امــام ﷺ
ډير دے عـاليشـانـه مصطفیٰ ﷺ او مجتبیٰ ﷺ هغه
ډيــر دے عــاليشــانــه پــه نبيــانو کښې اعلیٰ هغه
هـــر لــقـــب اوچــت دے دَنبـــی خيـــر الانـــام ﷺ
ډيــر دے عـــاليشـــانـــه دَ نبيـــانـــو دے امــام ﷺ
ډيــر دے عــاليشــانــه لــه آسـمـانـه دے اُوچـت هغه
ډيــر دے عــاليشــانــه لــه هـرچانه دے اُوچـت هغه
ښــهٔ ښــائستـــهٔ دُنيـا کښـې پــه دُنيـا لــرې کلام
ډيــر دے عـــاليشـــانـــه دَ نبيـــانـــو دے امــام ﷺ
ډير دے عـاليشـانـه مـخـلـوقاتو کښې خير البشر ﷺ
ډيـر دے عـــاليشـــانـه نـورانـی هـغـه نُورونـظـر
وائـــی احـــمـــد وائـــی عــزت مـنـدئـې دے غـلام
ډيــر دے عـــاليشـــانـــه دَ نبيـــانـــو دے امــام ﷺ

★★★★★★

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دین ئې بهترینه په دُنیا کښې په هر ګام دے
دا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ نُور مقام دے

هر څۀ پیدا شوی کائنات کښې ئې له مخه دی
هر څۀ پیدا شوی ټول جهات کښې ئې له مخه دی
نُور کامل دُنیا کښې ئې ښائسته حسین کلام دے
دا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ نُور مقام دے

دغه بیان شته دے ښۀ په لویو کتابونو کښې
دغه بیان شته دے دَ نیکانو په قولونو کښې
رحمة اللعٰلمین ﷺ سحر دے هم ماښام دے
دا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ نُور مقام دے

شپه ئې دَ معراج ده نورانی په آسمان کښې
شپه ئې دَ معراج ده نورانی په لامکان کښې
دغه شپه کښې مونځ دَ پاك اللّٰه دَ در انعام دے
دا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ نُور مقام دے

دین کښې ئې فلاح ده دَ دُنیا او دَ عقبیٰ دَ در
دین کښې ئې فلاح ده اے احمده! دَ هرچا دَ در
هر بشر دَ پاره کۀ آزاد دے کۀ غلام دے
دا دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ نُور مقام دے

★★★★★★★

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمونږ دَ اماماڼو په امام ﷺ سره یادیږي
حسین ددې دُنیا خیرالانام ﷺ سره یادیږي

یادیږي په طٰهٰ ﷺ او مزمل ﷺ سره دُنیا کښې
یادیږي مدثر ﷺ سره دُنیا کښې په هرځوا کښې

هر ځائے ښۀ په ادب او احترام سره یادیږي
حسین ددې دُنیا خیرالانام ﷺ سره یادیږي

یادیږي په یٰسین ﷺ سره دُنیا کښې په هردر
یادیږي په امین ﷺ سره دُنیا کښې په هردر

عظیم په هرصفت په لوئے مقام سره یادیږي
حسین ددې دُنیا خیرالانام ﷺ سره یادیږي

یادیږي بره نمر سره ښائسته خیر البشر ﷺ
یادیږي پاس قمر سره رڼا تهول منوَر

سخی دَ هریو در ښۀ په اکرام سره یادیږي
حسین ددې دُنیا خیرالانام ﷺ سره یادیږي

یادیږي اوّلین سره دُنیا کښې په لقب
یادیږي آخرین سره دُنیا کښې په لقب

دُنیا کښې تل په زړه خوږ کلام سره یادیږي
حسین ددې دُنیا خیرالانام ﷺ سره یادیږي

یادیږي په خاتم دَ مرسلانو ﷺ دَ دُنیا

يـاديـړی پـه پـه لـقـب سره دُنيـا کښې مصطفیٰ ﷺ
احـمـده ! نـورانـی پـه نُـور تـمـام سـره يـاديـړی
حسيـن ددې دُنيـا خيـرالانـام ﷺ سـره يـاديـړی

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنيـا کښې پـه محبوب دَ پاك سبحان سره ياديړی
نبـی دا پـه نبـی اٰخـرزمـان ﷺ سـره يـاديـړی
يـاديـړی پـه رحـمـت سره دُنيـا کښې هريشرلـه
يـاديـړی هدايـت سـره دُنيـا کښې هـر بشـر لـه
هـادی دَ زمـانـے پـه ښـهٔ لوئے شان سره ياديړی
نبـی دا پـه نبـی اٰخـرزمـان ﷺ سـره يـاديـړی
يـاديـړی پـه خـوشبـو سـره دُنيـا کښې پـه هردر
يـاديـړی پـه خـوشبـو سره ويـنـا کښې پـه هردر
دُنيـا کښې هـرطـرف تـه مهـريـان سره يـاديـړی
نبـی دا پـه نبـی اٰخـرزمـان ﷺ سـره يـاديـړی
يـاديـړی اداګـانـې ئـې لـعـلـونـه دَ جهـان
يـاديـړی اداګـانـې ئـې ګـلـونـه دَ جهـان
بهتـر پـه کـائـنـات کښې ښـهٔ انسان سره ياديړی
نبـی دا پـه نبـی اٰخـرزمـان ﷺ سـره يـاديـړی
يـاديـړی پـه سـکـون سـره دُنيـا کښې دَ بشـر
يـاديـړی ښـهٔ ژونـدون سـره دُنيـا کښې پـه هردر

قسم دے هم محبوب دَ دوجهان سره یادیږی
نبی دا په نبی اٰخرزمان ﷺ سره یادیږی
یادیږی در په درصفا رنا دَ شریعت
یادیږی در په درصفا رنا نُور دَ سنت
دُنیا کښې دَ اللّٰه په لوئے احسان سره یادیږی
نبی دا په نبی اٰخرزمان ﷺ سره یادیږی
یادیږی ئې اوصاف دغه ښُکلا دَ هرچمن
یادیږی ئې اوصاف دغه ښُکلا دَ هروطن
احمده! بهترین په هربیان سره یادیږی
نبی دا په نبی اٰخرزمان ﷺ سره یادیږی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

کامله دَ دُنیا په هرصفت سره یادیږی
نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی
نبی ﷺ زمونږه هرځائے دَ عزت لری مقام
عالی ددے دُنیا دا هرساعت لری مقام
کامله دَ دُنیا په شریعت سره یادیږی
نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی
کامله دَ دُنیائي هریو کار دے دَ جهان
کامله دَ دُنیائي هرګفتار دے دَ جهان
کامله په انورو دَ سنت سره یادیږی

نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی

کامله په اخلاق سره یادیږی درپه در

کامله په اخلاق سره یادیږی معطّر

کامله په دُنیا کښې هدایت سره یادیږی

نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی

کامله په حیا او په وفا سره یادیږی

کامله په دُنیا کښې هر ادا سره یادیږی

دُنیا کښې دَ هر در په سعادت سره یادیږی

نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی

سخی دَهریو در دَ هردربار هغه یادیږی

سخی په کائنات کښې باربار هغه یادیږی

هرځائے کښې ښۀ په مینه محبت سره یادیږی

نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی

یادیږی هغه هرځائے کښې رهبر دَ هر بشر

احمد علی ددغې نه دے هر بشر خبر

رهبر دَ کائنات دے په رحمت سره یادیږی

نبی ﷺ زمونږه هرځائے په عزت سره یادیږی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته ۀ دَ محمد خیر الابرار ﷺ وطن دے

ښائسته ۀ دَ مُرسلانو دَ تاجدار ﷺ وطن دے

ښائستۀ ښکلے وطن دَ محمد خیر الانام ﷺ دے
ښائستۀ ښکلے وطن دَ اماmano دَ امام ﷺ دے
ښائسته دَ ټولو خلقو دَ سردار وطن دے
ښائستۀ دَ مُرسلانو دَ تاجدار ﷺ وطن دے
ښائستۀ ښکلے وطن دے دَ طٰهٰ ﷺ او دَ یٰسین ﷺ
قسم دے ډیر ښائسته دے په دُنیا کښې بهترین
قسم دے دَ محبوب دَ ربِّ غفار وطن دے
ښائستۀ دَ مُرسلانو دَ تاجدار ﷺ وطن دے
ښائسته ښکلے وطن دے هر صفت سره اعلیٰ
ښائسته ښکلے چمن دے هر صفت سره اعلیٰ
وطن دغه دَ خلقو دَ غمخوار ﷺ وطن دے
ښائستۀ دَ مُرسلانو دَ تاجدار ﷺ وطن دے
ښائستۀ ښکلے وطن دے عزتمنده عالیشان
احمدعلی ! تعریف ئې دے لیکلے په جهان
قسم دے مدینه دا ښائسته ښار وطن دے
ښائستۀ دَ مُرسلانو دَ تاجدار ﷺ وطن دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اعلیٰ په هر صفت سره اعلیٰ دا چمن دے
قسم دے په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ دا چمن دے
اعلیٰ ورته وئیلی دي نیکانو صالحانو

اعلیٰ ورته وئیلی په دُنیا کښې امامانو
قسم دے بهترین دَ نور رڼا دا چمن دے
قسم دے په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ دا چمن دے
اعلیٰ ورته وئیلی دی صدیقؓ عمرؓ عثمانؓ
اعلیٰ ورته وئیلی دے بلالؓ سره حسّان
دُنیا کښې لاثانی تل په هرخوا دا چمن دے
قسم دے په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ دا چمن دے
اعلیٰ ورته وئیلی دی حُسین سره حسنؓ
اعلیٰ ورته وئیلی دی اصحابوؓ کښې هرتن
هر ښار نه په دُنیا کښې ښۀ بالا دا چمن دے
قسم دے په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ دا چمن دے
اعلیٰ ورته وئیلی دی عرب کښې عربیانو
اعلیٰ ورته وئیلی دی عجم کښې عجمیانو
احمده! تل ممتاز په دے ویناَ دا چمن دے
قسم دے په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ دا چمن دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تابع شۀ دَنبی ﷺ دَ شیطانت خبرے پریده
خبره دَ سنت کړه دَ بدعت خبرے پریده
خبره همیشه کوه دَ پاك رسول ﷺ دَ در
خبره همیشه کوه دَ سیّدالبشر ﷺ

خبرے دَ رڼا کړه دَ ظلمت خبرے پریده

خبره دَ سنت کړه دَ بدعت خبرے پریده

خبره همیشه کوه دَ سیدالورئ ﷺ

خبره همیشه کوه دُنیا کښې دَ ربتیا

خبره کړه دَ حق دَ ضلالت خبرے پریده

خبره دَ سنت کړه دَ بدعت خبرے پریده

خبرے دَ امین دَ امانت کوه هر څوا

خبرے ئې دُنیا کښې کوه دلته دَ وفا

هر کار کړه دَ اصلاح دَ شرارت خبرے پریده

خبره دَ سنت کړه دَ بدعت خبرے پریده

هر کار کښې پیروی کوه دَ سیدالابرار ﷺ

کارونه ښۀ په سوچ کوه چې اُنکړے تلوار

د دین سره کړه مینه دَ نفرت خبرے پریده

خبره دَ سنت کړه دَ بدعت خبرے پریده

د دین سره کړه مینه دغه لاره دَ نبی ﷺ ده

د دین سره کړه مینه دغه لار دَ مدنی ﷺ ده

احمده ! کړه دوستی دَ عداوت خبرے پریده

خبره دَ سنت کړه دَ بدعت خبرے پریده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے ښائسته په مدینه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

لکه دَ ګل په باغیچه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

شپه دَ معراج وه ټول نبیان او مرسلان جمع وو

شپه دَ معراج وه عزتمنده دَ جهان جمع وو

نُور دَ معراج په دغه شپه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

لکه دَ ګل په باغیچه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

شپه دَهجرت وه هره لاره دَ مکې رڼا وه

شپه دَ هجرت وه هره لاردَ مدینې رڼا وه

ښائسته حسین په هرکوڅه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

لکه دَ ګل په باغیچه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

ښکلے ښائسته دَ مدینې په هر محفل کښې هغه

ښکلے ښائسته دَ مدینې په هر منزل کښې هغه

ښائسته حسین په ائینه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

لکه دَ ګل په باغیچه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

ښکلے ښائسته هغه رهبر دَ ټول جهان دَ پاره

رهبر رهبر دے اے احمده ! دَ مردان دَ پاره

آرام فرما دے په روضه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

لکه دَ ګل په باغیچه کښې دا زمونږ نبی ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

شته دے شته دے خلق چې سنت سره کړې مینه

داسے خلق شته چې شریعت سره کړې مینه

شته داسې کسان چې په سنت باندې نثار دي
شته داسې کسان چې دَ سنتو تابعدار دي
داسې خلق شته چې شرافت سره کړې مینه
شته دې شته دې خلق چې سنت سره کړې مینه
داسې خلق شته دې چې تابع دَمصطفیٰ ﷺ دي
داسې خلق شته دې چې تابع دَ نُور رڼا دي
شته داسې کسان چې هدایت سره کړې مینه
شته دې شته دې خلق چې سنت سره کړې مینه
داسې خلق شته چې رضا غواړي دَ رسول ﷺ
داسې خلق شته چې رڼا غواړي دَ رسول ﷺ
شته داسې مخلوق چې سعادت سره کړې مینه
شته دې شته دې خلق چې سنت سره کړې مینه
داسې خلق شته چې لاره غواړي دَ رسول ﷺ
ځان دلته دُنیا کښې بچ کوي دَ هر فُضُول
داسې خلق شته چې تلاوت سره کړې مینه
شته دې شته دې خلق چې سنت سره کړې مینه
اے احمده! شته دې دَ نیکانو ډلې ډلې
شته دې په دُنیا دَ صالحانو ډلې ډلې
شته داسې کسان چې آخرت سره کړې مینه
شته دې شته دې خلق چې سنت سره کړې مینه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زۀ محمد ﷺ منم مقام ئې دَ مولیٰ نه پس
زۀ منم ټول نیکان مخلوق دَ انبیاء نه پس

تورات زبور شته هم انجیل دَ رب کتاب منه
دا ټول منمه دَ قرآن دَ حق وینا نه پس

ستوری دُنیا کښې دَ رڼا دی ټول اصحابؓ دَ نبی ﷺ
منم دَ دوی ټولو رڼا زۀ دَ طٰهٰ ﷺ نه پس

اوّل صدیقؓ دے بیا عمرؓ بیا دَ عثمانؓ رُتبه ده
بیا نُور اصحابؓ دی د دُنیا دَ مرتضیٰؓ نه پس

دَ صداقت زۀ په دُنیا کښې هر مقام منمه
خو دا منمه دَ صدیقؓ زۀ دَ رښتیا نه پس

دَ عدل ټول قسمونه دلته کښې منلی ما دی
خو دا منمه دَ عمرؓ دَ رهنما نه پس

سخاوت هر ځائے په دُنیا کښې دغه ښکاری چې نن
دا ټول منمه دَ عثمانؓ دَ ابتدا نه پس

دَ شجاعت قیصے منمه ټولے دلته کښې زۀ
دغه منمه دَ علیؓ پشان خیر خواه نه پس

نیکان منمه په دُنیا باندی احمده ! زه ټول
خو دوی منمه په دُنیا رسول اللّٰه ﷺ نه پس

★★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ زړونو په دُنیا کښې تل علاج دے محمد ﷺ
قسم دے په دُنیا کښې دَ سرتاج دے محمد ﷺ

رحمت ئې دَ دُنیا په هریو در کښې ملاوېږی
رهبر دَ مؤمنانو دَ افواج دے محمد ﷺ

رنا ئې رڼا کړی دَ دُنیا دے هریو در
ښائسته حسین دُنیا کښې په مزاج دے محمد ﷺ

ښائسته دے خوشبوداره بهترینه په هر در
دُښمن ددې دُنیا دَ بدرواج دے محمد ﷺ

احمدعلی ! روښانه ئې ستاکور کړلو دَ زړۀ
کامله په دُنیا باندې سراج دے محمد ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نورانی دَ پاک رسول ﷺ په نُور رڼا شۀ
دَ رنځور دَ زړۀ علاج دَ زړۀ دوا شۀ

هر سنت سره کړه مینه دَ رسول ﷺ
پیروکار دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ شۀ

لرے نشے دَ سنت دَ محمد ﷺ نه
طریقے سره ښائسته دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ

هر ادا دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ نه واخله
په سیرت سره کامله دَ دُنیا شۀ

اے احمده! طریقه دا دَ فلاح ده
راشه راشه دَ فلاح دَ پاره راشۀ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بهار بهار دے محمد عربی ﷺ
زما دلدار دے محمد عربی ﷺ
ختم په دُوی شولو خزان دَجهان
خفه له دُوی شولو شیطان دَ جهان
سکون قرار دے محمد عربی ﷺ
بهار بهار دے محمد عربی ﷺ
رڼا په دوی سره هر درد غه شو
نورانی نور هریو سحر دغه شو
نُور دَ گفتار دے محمد عربی ﷺ
بهار بهار دے محمد عربی ﷺ
دَ هریو درنه تږول غمونه لاړل
دَ هریو در مصیبتونه لاړل
غمخوار غمخوار دے محمد عربی ﷺ
بهار بهار دے محمد عربی ﷺ
لاړے تیري ددي دُنیا نه تږولے
لاړے تیري دلته هر خوا نه تږولے
نُور دَ هردار دے محمد عربی ﷺ

بهـــار بهـــار دے مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ
شـکـــاره شـو هـر ځـائـے کـښـې سـنـت دَ نبی ﷺ
شـــکـــاره شـــو هـــر ځـائـے شـريـعـت دَ نبـی ﷺ
داسـے سـر دار دے مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ
بهـــار بهـــار دے مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ
درئـــې رحـــمـــت دَ کـــائـــنـــات دے تـــول
درئـــې رحـــمـــت دَ مـــخـلـوقـــات دے تـــول
داسـے تـــاجـدار دے مـــحـمـد عـــربـــی ﷺ
بهـــار بهـــار دے مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ
بيـــان پـــوره شـــو دَ احـــمـــد عـــلـــی دا
اعـــلان پـــوره شـــو دَ احـــمـــد عـــلـــی دا
دوســت دَ غـفـــار دے مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ
بهـــار بهـــار دے مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چـې تـــابـع دَ پـاك رسـول ﷺ دَ سـنـت نـــۀ دے
نـو کـــامـلـــه پــه اسـلام شـريـعـت نـــۀ دے
دَ ســنــت پـشـــان دولـــت نشتـــه دُنيـــا کـښـې
غـــټ دولـــت دے داسـے بـل يـو دولـت نـــۀ دے
تـول وجـود دَ پـــاك رسـول الـلّـــه ﷺ رحـمـت دے
تـول رحـمـت دے داسـے بـل يـو رحـمـت نـــۀ دے

دَ بدعت سره دَعویٰ دَمینې کول
دا هیڅ کله دَ نبی ﷺ محبت نۀ دے
دَ شیطان رضا چې غواړی په دُنیا کښې
تابع دے دَ پاك رسول ﷺ دا ساعت نه دے
هره لاره چې کړه وی دَجهان
خورم قسم دغه ځائے پروت هدایت نۀ دے
کوم لاره چې مولیٰ طرف ته تلے
دغه لاره باندې پروت ضلالت نۀ دے
دَ رسول ﷺ په لاره لاړ شۀ کامیابی ده
نۀ دے نۀ دے بل ځائے کښې سعادت نۀ دے
اے احمده! دَ سنت لار دَ عزت ده
دا عزت دے داسے بل یو عزت نۀ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قسم دے دَ هردر دَ زړۀ قرار دے محمد ﷺ
محبوب دَمخلوقات دَ ربَ غفار دے محمد ﷺ
جمال ته ئې حیران دی مخلوقات ټول دَ جهان
جمال ته ئې حیران دی مخلوقات ټول دَ آسمان
کامل په هریو حُسن حسندار دے محمد ﷺ
محبوب دَمخلوقات دَ ربَ غفار دے محمد ﷺ
قسم دے معزه دَ نبیانو دے محفل کښې

قسم دے معزز دَ امامانو دے محفل کښې
ممتاز دَ کائنات په هريو دار دے محمد ﷺ
محبوب دَ مخلوقات دَ ربَ غفار دے محمد ﷺ
خدمت باندې جبرئيل کوئى ئې فخر دَ جهان
خدمت باندې ئى فخر کوى دلته مسلمان
أسمان کښې بره ربَ سره رازدار دے محمد ﷺ
محبوب دَ مخلوقات دَ ربَ غفار دے محمد ﷺ
حجره ئې ده أوچته له أسمانه په صفت
قسم دے په محشر به دَ اُمت کړى شفاعت
احمده ! ستا رهبر دَ هرې لار دے محمد ﷺ
محبوب دَ مخلوقات دَ ربَ غفار دے محمد ﷺ

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

شائستهٔ دَ هر ګلزار نه دے ګلزار دَ محمد ﷺ
شائسته دَ هر ګفتار نه دے ګفتار دَ محمد ﷺ
قسم دے لاثانى دے محمد خير الابرار ﷺ
امام دے دَ نبيانو معزه په هر لار
شائستهٔ دَ هرې لارے نه ده لار دَ محمد ﷺ
شائسته دَ هر ګفتار نه دے ګفتار دَ محمد ﷺ
وليان دَ زمانے ورته نهٔ رسى دَ جهان
اصحابؓ د پاك نبى ﷺ دى قدرمنده عاليشان

هـرچا نــه لـوے مـقـام لري هريار دَ مـحـمـد ﷺ
ښـائسـتــه دَ هـرګـفـتـار نـه دے ګـفـتـار دَ محمد ﷺ
ګـلـــزار ئـــي پـــه دُنيـا دَ هـرګـلـزار نــۀ دے اُوچـت
دُنيا کښـې ئـې روضـه کښې حُسن پروت دے دَ جنت
هـر در دَ پـاك نبـي ﷺ دے خـوشبـودار دَ محمد ﷺ
ښـائسـتــه دَ هـرګـفـتـار نـه دے ګـفـتـار دَ محمد ﷺ
دريـار دَ مـحـمـد ﷺ کښـې هـريو حُسن دَ جهان دے
دريار دَ مـحـمـد ﷺ کښې حُسن پروت دَ ګلستان دے
ګـواه پــه دے بيـــان دي ټـول اَثـــار دَ مـحـمـد ﷺ
ښـائسـتــه دَ هـرګـفـتـار نـه دے ګـفـتـار دَ محمد ﷺ
دريـــار دَ مـحـمـد ﷺ دے دَ انـوارو مـجـمـوعـــه
احـــمــده ! پـــه دُنيـــا کښـــې دَ انـوارو ده چينــــه
انـوار دَ مـحـمـد ﷺ دي ټـول اذکـار دَ مـحـمـد ﷺ
ښـائسـتــه دَ هـرګـفـتـار نـه دے ګـفـتـار دَ محمد ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ديــن دَ مـحـمـد ﷺ دے رحـمـتـونـو نـــه دے ډك
ديـــن دَ مــحـمـد ﷺ دے بـرکـتـونـو نـــه دے ډك
ديـــن دَ مـــحـــمـــد ﷺ دے دَ وفـــا اودَ حيـــا
ديــن دَ مــحـمـد ﷺ دَ ثـوابـونـونـــه دے ډك
ديـــن دَ مـــحـــمـــد ﷺ دَ هـــر در رنـــا رنـــا

دين دَ محمد ﷺ ښکلو خوبونو نه دے ډك

دين دَ محمد ﷺ دے دَ دُنيا دَ درعلاج

دين دَ محمد ﷺ دَ صفتونو نه دے ډك

دين دَ محمد ﷺ لکه ګل پشان حسين

ځکه وايم زه چې دَ ګلونو نه دے ډك

دين دَ محمد ﷺ دے هدايت دَ ټول جهان

ځکه دا دَ لويو مثالونو نه دے ډك

دين دَ محمد ﷺ دے احمده! نُور سحر

ځکه دَ دُنيا ښۀ عملونو نه دے ډك

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

لوګے درنه لوګے شمه اے سيَدالبشره! ﷺ

دَ زړۀ نه دغه وايمه رسوله! پيغمبره! ﷺ

هر در ددې جهان دے اوچت شوې ستا له مخه

بشر ددې جهان دے اوچت شوې ستا له مخه

کاذب نۀ يمه دلته يم ربښتونے په خبره

دَ زړۀ نه دغه وايمه رسوله! پيغمبره! ﷺ

آسمان بره روښانه شو په نُور دے منوَر

جهان بره روښانه شو په نُور دے منور

شغلے شولے جُدا هم دَ قمره او دَ نمره

دَ زړۀ نه دغه وايمه رسوله! پيغمبره! ﷺ

رڼـــا شـــوه هـــرطـــرف تـــه جهـــالـــت شـــولو فـنـــا

رڼـــا شـــوه هـــرطـــرف تـــه ضـــلالـــت شـــولو فـنـــا

رڼـــا دي جهـــان ســـره أســـمـــان شـــولـــو هـــم بـــره

دَزړۀ نـــه دغـــه وايـــمـــه رســـولـــه ! پـيـغـمـبـــره ! ﷺ

دَ ســتـــرګـــو رڼـــا راغـلـــه ســتـــا رڼـــا ســـره هـــرخـوا

رڼـــا دَ زړونـــو راغـــلـــه پـــه تـيـــرو کـښـــي دَ دُنـيـــا

خـــوشـبـــو دَ ســنـــت راغـلـــه هـــريـــو درشـــو معـطَـــره

دَزړۀ نـــه دغـــه وايـــمـــه رســـولـــه ! پـيـغـمـبـــره ! ﷺ

انـــوار دَ شـــريـــعـــت شـــولـــو خـــوارۀ پـــه هـــرطـــرف

انـــوار دَ هـــدايـــت شـــولـــو خـــوارۀ پـــه هـــرطـــرف

احـــمـــد عـــلـــي لـيـکـلـــے دا خـبـــره مـخـتـصـــره

دَزړۀ نـــه دغـــه وايـــمـــه رســـولـــه ! پـيـغـمـبـــره ! ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ځـــوك چـي پـــه لار دَ مـحـمـدرسـول اللّٰـه ﷺ تـلـے دے

هـغـــه رڼـــا لـــه پـــه دُنـيـــا کـښـي دَ عـقـبـیٰ تـلـے دے

لاره ده لاره دَ نـبـــی ﷺ دَ هـــريـــو لار نـــه غـــوره

لاره ده لاره دَ نـبـــی ﷺ قـســـم دے ده بـهـتـــره

پـــه دغـــه لاره چـي ځـوك دلـتـه پـه دُنـيـا تـلـے دے

هـغـــه رڼـــا لـــه پـــه دُنـيـــا کـښـي دَ عـقـبـیٰ تـلـے دے

دلـتـــه ګـــلـــونـــه دَ دُنـيـــا د درپـــراتـــه دي تـــول

دلته لعلونه دَ دُنیا دَ در پراته دي تول
هوښیار سړے دے چې په لار دَ مصطفیٰ ﷺ تلے دے
هغه رښا له په دُنیا کښې دَ عقبیٰ تلے دے
دلته خوشبو ده بهترینه دَ دُنیا دَ در
دلته خوشبو ده بهترینه دَ هر یو ښار
پوهه سړے دے چې په لاره دَ طٰهٰ ﷺ تلے دے
هغه رښا له په دُنیا کښې دَ عقبیٰ تلے دے
دلته کښې حُسن دَ هر در دَ پاره ربَ ایښے دے
دلته کښې هر قسمه مولیٰ زمونږ ادب ایښے دے
ښهٔ خوش قسمت دے چې په لاره دَ مولیٰ دے تلے دے
هغه رښا له په دُنیا کښې دَ عقبیٰ تلے دے
دلته جمال کمال دے پروت احمده ! هر ښار له
دلته جمال کمال دے پروت ښائسته هر یو نظر له
ډیر خوش نصیب دے چې په لار دَ مجتبیٰ ﷺ تلے دے
هغه رښا له په دُنیا کښې دَ عقبیٰ تلے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلي هر یو در دَ مدینې دے
ښکلي پیغمبر ﷺ دَ مدینې دے
ښکلي ساکنان دَ مدینې دي تول
ښکلي انسانان دَ مدینې دي تول

ښکلي هر بشر دَ مدينې دے
ښکلي پيغمبر ﷺ دَ مدينې دے
ښکلي هر يو ګل ددغې در دے
ښکلي هر محفل ددغې در دے
ښکلي هر نظر دَ مدينې دے
ښکلے پيغمبر ﷺ دَ مدينې دے
ښکلي هر مکان دَ مدينې دے ډير
ښکي ګلستان دَ مدينې دے ډير
ښکلي هر سحر دَ مدينې دے
ښکلے پيغمبر ﷺ دَ مدينې دے
ښکلي هر يو در دے خوشبوداره ډير
ډك دَ انوارت دے لار په لاره ډير
ښکلي نُور او نمر دَ مدينې دے
ښکلے پيغمبر ﷺ دَ مدينې دے
ښکلي هر يو لعل دَ مدينې دے ډير
اے احمده! تا نه به دا نشي هير
ښکلي پاس قمر دَ مدينې دے
ښکلي پيغمبر ﷺ دَ مدينې دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلي ګلستان دَ مدينې منوري دے

نُور دَ دوجهان دَ مدینې منورې دے

ښکلی تول انصار دَمدینې منورې دی

ښکلی تول انوار دَ مدینې منورې دی

ښکلې پاس آسمان دَ مدینې منورې دے

ښکلې ګلستان دَ مدینې منورې دے

ښکلې هر سحر دَ مدینې منورې دے

ښکلې هر بشر دَ مدینې منورې دے

ښکلې هر مکان دَ مدینې منورې دے

ښکلې ګلستان دَ مدینې منورې دے

ښکلې پاس فضا دَ مدینې منورې ده

ښکلې ده ښُکلا دَ مدینې منورې ده

ښکلې هر بیان دَ مدینې منورې دے

ښکلې ګلستان دَ مدینې منورې دے

ښکلې هر صفت دَ مدینې منورې دے

دغه حقیقت دَ مدینې منورې دے

دا الحمده ! شان دَ مدینې منورې دے

ښکلې ګلستان دَ مدینې منورې دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چا دَ سنت سره چې مینه محبت کړیدے

دَ هر بدعت نه هغۀ هرځائے کښې نفرت کړیدے

چاچې اسلام سره دُنیا کښې دلته مینه کړے
کار په دُنیا ئې همیشه دَ شریعت کړیدے
چاچې دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ په لاره تلل خوښ کړي
دَ هر ابلیس هغه هر ځائے مخالفت کړیدے
چا چې اغستے طریقه دَپاك رسول ﷺ دَ ژوند نه
کار ئې دُنیا کښې همیشه دَ محبت کړیدے
چا چې وفا دَ پاك نبی ﷺ سره دُنیا کښې کړے
په هریو کار کښې دَ رسول ﷺ ئې اطاعت کړیدے
چا چې سیرت دَ محمد ﷺ سره ژوندون ښائسته کړه
کار په دُنیا کښې ئې قسم دے دَ جنت کړیدے
چا چې اخلاق دَپاك نبی ﷺ دَخپل دَ ژوند حصه کړه
احمده ! هر ځائے کښې ئې هرچا نن صفت کړیدے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خپله تعریف دے بیان کړے زمونږ ربَ دَنبی ﷺ
لازم په هرچا باندې هرځائے دے ادب دَ نبی ﷺ
لازم په هرچا باندې دے هرځائے ادب دَ حضور ﷺ
یاد دے چې یاد دے هغه هرځائے په بشر او په نُور
عالی دُنیا کښې په دُنیا دے هر مکتب دَنبی ﷺ
لازم په هرچا باندې هرځائے دے ادب دَ نبی ﷺ
لازم په هرچا ددې در دے احترام او ادب

لازم په هر خوا دي در دے احترام او ادب
ادب کوی دَ ټول عجم سره عرب دَنبی ﷺ
لازم په هرچا باندي هرځائے دے ادب دَ نبی ﷺ
دا مرتبه او لوئے مقام دَ بل چا نشته دے دلته
دا مرتبه او احترام دَ بل چا نشته دے دلته
قسم دے ډیر زیات دے عالی پوره نسب دَنبی ﷺ
لازم په هرچا باندي هرځائے دے ادب دَ نبی ﷺ
په هر ماشوم بُډها اوځوان دغه ادب لازم دے
په هر مؤمن او مسلمان دغه ادب لازم دے
عالی صفت لری دُنیا کښي هر مرکب دَنبی ﷺ
لازم په هرچا باندي هرځائے دے ادب دَ نبی ﷺ
په هرچا اهل او عالم دغه لازم کړے دے ربَ
احمده! دغه لازم شوے په عجم او عرب
راته مقام دا ملاؤ شوے په سبب دَنبی ﷺ
لازم په هرچا باندي هرځائے دے ادب دَ نبی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اچولے چا چي دلته دَ سنت ښائسته لباس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے
هرځائے کښي به خوشحاله دَ دُنیا وی په هردر
هر چا له په دُنیا کښي به وی دلته کښي رهبر

دُنیا کښې چې دَ چا سره دا نُور دلته په لاس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے
هر کار کښې به دۀ سره دَربَ وی ملګرتیا
ګفتار کښې به دَ دۀ سره دَربَ وی ملګرتیا
بچ شوے چې بدعت نه په دُنیا دَهر بکواس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے
وریږی به په دۀ باندې دَ پاك اللّٰه رحمت
وریږی به په دۀ باندې انوار دَ شریعت
دُښمن چې دَ چا دلته په دُنیا باندې خنّاس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے
محبوب چې ورته وی دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ ګفتار
محبوب چې ورته وی دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ هر کار
ښائسته دغه بشر دغې دُنیا کښې حق شناس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے
محبوب چې ورته ال وی دَ حضرت رسول اللّٰه ﷺ
محبوب چې ورته حال وی دَ حضرت رسول اللّٰه ﷺ
ښائسته ئې دَ دُنیا دَدر دا مینه او احساس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے
محبوب چې ورته وی ټول اصحاب رضی الله عنهم دَ محمد ﷺ
احمده! وی محبوب ورته کتاب دَ محمد ﷺ

شاکر چې په دُنیا کښې په غُربت او په افلاس دے
قسم دے په یقین وایمه پاس دے هغه پاس دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

شته دَ قرآن سنت اجرونه درانۀ
دغه اجرونه لکه غرونه درانۀ
هریو قدم دَ پاك نبی ﷺ په لاره
قسم دے دا دی قدمونه درانۀ
هریو ادا دَ پاك نبی ﷺ دَ در
قسم دے دغه دی ګلونه درانۀ
چې دَ سنت په طریقه اُوشی کار
دغه شان دلته وی کارونه درانۀ
چې دَ نبی ﷺ په اتباع کښې اُوشی
داسے دی داسے عملونه درانۀ
په کښې پراته چې دَ نبی ﷺ سنت وی
په دُنیا داسے دی کورونه درانۀ
څوك چې اخلاق دَ پاك نبی ﷺ کړی خپل
قسم دے دغه دی خویونه درانۀ
نشته دے نشته دَ بدعت څۀ اجر
نۀ وی په یو ځائے کښې زګونه درانۀ
شته په سنت باندې اجرونه ښۀ ډیر

لــــري ډيـــــر ډيــــر دا ثـــوابــونــــــه درانــــــهٔ

مــــنـــــزل دَ هـــغـــو خـــلـــقـــو ډيـــر اُوچـــت وي

لــــري چـــې دلتـــــه کښـــې ســوچـونــــه درانـــــه

هــــــريـــــو مثــــــال دَ پـــــــاك نبـــــي ﷺ دَ در

دا دي احـــــمــــــده ! مثـــــالـــونـــــــه درانـــــــهٔ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

شتــه دے داسـے خلق چې کړي مينـه دَ سنت سره

مينــــه لــري زړهٔ کښــې دَ نبــي ﷺ دَ شــريعـت سره

شتــه دے داسـے خلق چې په دين باندې مئين دی بنهٔ

شتــه دے داسـے خلق چې تابع دَ ربَ متين دی بنهٔ

داسـے خلق شته دے چې کړي مينه پاك حضرت ﷺ سره

مينــــه لــري زړهٔ کښــې دَ نبــي ﷺ دَ شــريعـت سره

داسـے خـلـق شتـه دے چې زاريږي دَ نبي ﷺ نـه تل

داسـے خلق شتـه دے چې زاريـږي هـر ولی نـه تل

هــريـوه خبـره ئـې وي هــر ځـائـے محبـت ســره

مينــــه لــري زړهٔ کښــې دَ نبــي ﷺ دَ شــريعـت سره

شتـه دے داسـے خلق چې روان دی پاك نبي ﷺ پسـے

شتـه دے داسـے خـلـق چې روان دی مدني ﷺ پسـے

دا خـلـق ليـدلـے شـي دَ دُنيــا پــه صداقــت ســره

مينــــه لــري زړهٔ کښــې دَ نبــي ﷺ دَ شــريعـت سره

میـنــه لـری زړهٔ کښـي دَ اصـحـابوٌ دَنبی ﷺ سره

میـنـــه لـــری زړهٔ کښـي دَ احبـابـو دَ نبـی ﷺ سـره

دُوی تـول پیـجـنـدے شی دَ بـدعـت نـه په نفرت سره

میـنـــه لـری زړهٔ کښـي دَ نبـی ﷺ دَ شـریـعـت سره

داسے خـلـق شتـه دے چې ئې مینه شته قرآن سره

میـنـه ئې پـه زړهٔ کښي دَ رسول ﷺ وی هر بیان سره

داسے خـلـق شتـه دے چې یادیږی ښهٔ عـزت سـره

میـنـــه لـری زړهٔ کښـي دَ نبـی ﷺ دَ شـریـعـت سره

شتـه دے اے احـمـده ! ښهٔ ښهٔ خلق په دُنیا کښي ډیر

ذکـر دَ نبی ﷺ کـوی دُنیا کښـي پـه هرخوا کښي ډیر

داسے خـلـق شتـه دے چ یـادیـږی لوئے نسبت سره

میـنـــه لـری زړهٔ کښـي دَ نبـی ﷺ دَ شـریـعـت سره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

حُسـن دَ دُنیـا دَ درد ے تـول دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ سـره

داسے حُسـن نشتـــه پــه دُنیا کښي دَ بـل چا سره

هـریـو در حَسین دے پـه دُنیـا کښـی دَ طٰهٰ نبـی ﷺ

هریـو در حُسیـن دے پـه دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ نبی ﷺ

هـریــو در عـــالـی دے پـه اعلاؤ کښي اعلیٰ سره

حُسـن دَ دُنیـا دَ درد ے تـول دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ سـره

زلفے هم ښائسته دی دَ حضرت خیر الوریٰ ﷺ زمونږ

لوئے مقام لری په کائنات کښې مجتبیٰ ﷺ زمونږ

بره له اسمانه هم راز دار دے دَ مولیٰ سره

حُسن دَ دُنیا دَ درد ے ټول دَ مصطفیٰ ﷺ سره

خوند کوی ډیر خوند هریو صفت ئې دَ دُنیا دَ در

نشته نشته نشته دَ طٰهٰ ﷺ په شان بل یو بشر

هر کور رڼا دے دَ رسول ﷺ په نُور رڼا سره

حُسن دَ دُنیا دَ درد ے ټول دَ مصطفیٰ ﷺ سره

وائی احمد وائی عالیشان لری مقام هغه

بره ډیر اُوچت له هر اسمان لری مقام هغه

یاد عالی صفت سره هر ځائے کښې دے وینا سره

حُسن دَ دُنیا دَ درد ے ټول دَ مصطفیٰ ﷺ سره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راشۀ راشۀ تابعدار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ

مۀ ځه کوږ په نیغه لار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ

نیغۀ لاره دَ نبی خیر الابرار ﷺ ده

راشۀ راشۀ په دے دار دَ مصطفیٰ ﷺ شه

دَ هر درنه دغه در ښائسته حسین دے

په دے در ښۀ خوشبودار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ

دَ رڼا او دَ انوارو لاره دا ده

تابعدار دَ هر ګفتار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ

شیطانان په دغه لاره باندې نۀ ځی
بهترین په نُور انوار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ
دلته هر ساعت سپرلے وی دَ جهان
بهترین په هر یو کار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ
اے احمده! لاره نیغه دَنبی ﷺ ده
هر قدم باندې زار زار دَ مصطفیٰ ﷺ شۀ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك تابع چې دَ صادق ﷺ او اَمین ﷺ نۀ دے
تابع هغه دَ ربُّ العلمین نۀ دے
پیروی چې کوی څوك دَ شیطانانو
تابع هیڅ کله دَ طٰهٰ یٰسین ﷺ نۀ دے
پیروی چې کوی څوك دَ مشرکانو
پیروکار دَ پاك نبی ﷺ ددې دین نۀ دے
پیروی چې کوی څوك دَ کافرانو
دا بدتر دے هیڅ کله بهترین نۀ دے
اتباع چې کوی څوك دَ بداخلاقو
دَ دُنیا دَدر هیڅ کله حسین نۀ دے
اتباع چې دَنبی ﷺ اُنکری څوك
اے احمده! دا محبوب دَ متین نه دے

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څکه معززیم هریو کار زۀ دَ عزت کوُم
څکه پیروی زۀ دَ قرآن او دَ سنت کوُم
زۀ په هریو کار کښې پیروی دَ مصطفیٰ ﷺ کوُم
زۀ په هرګفتار کښې پیروی دَ مجتبیٰ ﷺ کوُم
کار په دے دُنیا کښې زۀ دَ مینے محبت کوُم
څکه معززیم هریو کار زۀ دَ عزت کوُم
زۀ په هریو کار کښې رضا غواړمه دَ پاك نبی ﷺ
زۀ په هریو کار کښې رضا غواړمه دَ هاشمی ﷺ
کار کښې همیشه زۀ دَ نبی ﷺ ښۀ اطاعت کوُم
څکه معززیم هریو کار زۀ دَ عزت کوُم
زۀ غواړمه دا چې مانه ربّ ناراضه نشی تل
دین سره ښائسته مې وی دُنیا کښې دغه هر محفل
کار همیشه هر ځائے نورانی زۀ هرساعت کوُم
څکه معززیم هریو کار زۀ دَ عزت کوُم
خوښ مې هریو کار دے طریقه دَ خاتم الرُّسل ﷺ
خوښ مې هر ګفتار دے طریقه دَ خاتم الرُّسل ﷺ
زۀ احمد هر ځائے کښې دَ نبی مدحه صفت کوُم
څکه معززیم هریو کار زۀ دَ عزت کوُم

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مخ کائنات کښې دَ نبی ﷺ له هر بشر ښکلے دے
مخ دَ محبوب ﷺ دَ کائنات دَ ربَ اکبر ښکلے دے
مخ والضُّحیٰ ئې دَ دُنیا په هر صفت ښکلے دے
مخ والضُّحیٰ ئې دَ دُنیا په حقیقت ښکلے دے
قسم دے ډیر حسین صورت دَ پیغمبر ﷺ ښکلے دے
مخ کائنات کښې دَ نبی ﷺ له هر بشر ښکلے دے
په والضُّحیٰ سره ئې ذکر په قرآن کښې شوے
په نُور رڼا سره ئې ذکر په جهان کښې شوے
نورانی نور دَ لبرانو ډیر دلبر ښکلے دے
مخ کائنات کښې دَ نبی ﷺ له هر بشر ښکلے دے
ذکر ئې شوے په محفل دَ عالمانو کښې هم
ذکر ئې شوے په محفل دَ امامانو کښې هم
قسم دے دا حسین بشر له بره نمر ښکلے دے
مخ کائنات کښې دَ نبی ﷺ له هر بشر ښکلے دے
ذکر ئې شوے په ټولی کښې دَ نبیانو دے هم
خاتم یاد شوے په دُنیا دَ مُرسلانو دے هم
احمده! ذکر ئې هر ځائے کښې په هردر ښکلے دے
مخ کائنات کښې دَ نبی ﷺ له هر بشر ښکلے دے

★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ثواب شته په تعریف دَ مصطفیٰ ﷺ باندې ډیر ډیر
اجر شته په تعریف خیر الوریٰ ﷺ باندې ډیر ډیر
اجر شته په اٰخر کښې په توصیف دَ محمد ﷺ
قسم دے شته اجر په دے وینا باندې ډیر ډیر
اجر شته ثوابونه دَ اللّٰه په لوئے دربار
شته دي باندې عطا په دې دُنیا باندې ډیر ډیر
اجر شته ثوابونه وائی دغه عالمان
اجر په دغه کار شته په هرخوا باندې ډیر ډیر
اجر شته دے فلاح په دغې کار باندې احمده !
اجر شته دَ رسول ﷺ په اقتدا باندې ډیر ډیر

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته له هر سیرت نه دے سیرت دَ محمد ﷺ
ښائسته له هر صورت نه دے صورت دَ محمد ﷺ
ښائسته په هر گفتار سره محبوب دَ پاك اللّٰه نبی ﷺ
ښائسته په هریو کار سره محبوب دَ پاك اللّٰه نبی ﷺ
حسین له هر صفت نه دے صفت دَ محمد ﷺ
ښائسته له هر سیرت نه دے سیرت دَ محمد ﷺ
ښائسته په انواراتو دے محبوب دَ پاك اللّٰه نبی ﷺ
ښائسته په عباداتو دے محبوب دَ پاك اللّٰه نبی ﷺ

حسین له هرعادت نه دے عادت دَ محمد ﷺ

ښائسته ئ له هر سیرت نه دے سیرت دَ محمد ﷺ

ښائسته ئ په هر ادا سره محبوب دَ پاك الله نبی ﷺ

ښائسته هر يو وفا سره محبوب دَ پاك الله نبی ﷺ

ښائسته ئ له هرساعت نه دے ساعت دَ محمد ﷺ

ښائسته ئ له هر سیرت نه دے سیرت دَ محمد ﷺ

ښائسته ئ له هر جمال نه دے جمال دَ مصطفیٰ نبی ﷺ

ښائسته له هر کمال نه دے کمال دَ مصطفیٰ نبی ﷺ

احمده ! ډير حسین دے هر نسبت دَ محمد ﷺ

ښائسته ئ له هر سیرت نه دے سیرت دَ محمد ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

صاحب دَ لوئے مقام او لوئے عزت دے محمد ﷺ

ښائسته ئ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

صاحب دَ لوئے مقام دے لا مکان ته رسيدلے

صاحب دَ لوئے مقام دے هر آسمان ته رسيدلے

عالی دَ کائنات په هر نسبت دے محمد ﷺ

ښائسته ئ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

صاحب دَ لوئے مقام دے داسے وائی هر بشر

صاحب دَ لوئے مقام دے داسے وائی بحر وبر

عالی په کائنات کښې هرساعت دے محمد ﷺ

ښائسته ۀ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

صاحب دَلوئے مقام دے داسے وائی اولیاء

صاحب دَلوئے مقام دے داسے وائی اتقیاء

قسم دے دَ هر چا دَ دربرکت دے محمد ﷺ

ښائسته ۀ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

صاحب دَلوئے مقام دے داسے وائی مخلوقات

صاحب دَلوئے مقام دے نُور دے نُور په ټول جهات

هریو بشر له سپوږي دَ رحمت دے محمد ﷺ

ښائسته ۀ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

صاحب دَلوئے مقام دے وائی وائی دا پیریان

صاحب دَلوئے مقام دے وائی وائی ټول جهان

قسم دے په رُتبه کښې ډیر اُوچت دے محمد ﷺ

ښائسته ۀ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

صاحب دَلوئے مقام دے داسے وائی عالمان

صاحب دَلوئے مقام دے احمد وائی دَ مردان

قسم دے مجسمه محبت دے محمد ﷺ

ښائسته ۀ دَ کائنات په هر صفت دے محمد ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمونږ نبی ﷺ دے ټول مخلوق په بهترین ستائیلے

رَبّ په طٰهٰ ﷺ ستائیلے رَبّ په یٰسین ﷺ ستائیلے

زمونږ نبی ﷺ دے په بهترو کښې بهتر هغه دے
زمونږ نبی ﷺ دے رهبرانو کښې رهبر هغه دے
هم په لقب ئې رحمة للعٰلمین ﷺ ستائیلے
رب په طٰهٰ ﷺ ستائیلے رب په یٰسین ﷺ ستائیلے
زمونږ نبی ﷺ دے په امام دَ مُرسلانو ﷺ یاد دے
زمونږ نبی ﷺ دے په امام دَ اماما‌نو ﷺ یاد دے
په هر ښائسته لقب ئې دلته کښې حسین ستائیلے
رب په طٰهٰ ﷺ ستائیلے رب په یٰسین ﷺ ستائیلے
زمونږ نبی ﷺ دے مقتدا دَ هر بشر هغه دے
زمونږ نبی ﷺ دے مقتدا دَ هر افسر هغه دے
په ټول جهان کښې عربیانو په امین ﷺ ستائیلے
رب په طٰهٰ ﷺ ستائیلے رب په یٰسین ﷺ ستائیلے
زمونږ نبی ﷺ دے هم رڼا دَ هر یو در هغه دے
زمونږ نبی ﷺ دے احمد وائی نُور نظر هغه دے
مخلوق دُنیا کښې هر طرف ته خلقو په نیازبین ستائیلے
رب په طٰهٰ ﷺ ستائیلے رب په یٰسین ﷺ ستائیلے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته په ښکلی ذات دے زمونږه پیغمبر ﷺ
رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبر ﷺ
رحمت دَ هر اسمان دے تاجدار دَ مدینې ﷺ

رحمت دَ لامکان دے سردار دَ مدیني ﷺ

عظیم په ټول حالات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ هر یو کور دے خاتم الانبیاء ﷺ

رحمت دَ هر یو لور دے خاتم الانبیاء ﷺ

جامع دَ کمالات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ هر بشر دے محبوب دَ ربَ اکبر ﷺ

رحمت دَ لر او بر دے محبوب دَ ربَ اکبر ﷺ

حسین په عبادات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ هر مالدار دے خیر الوریٰ نبی ﷺ

دَ سر سپوري غمخوار دے خیر الوریٰ نبی ﷺ

حسین په معاملات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ هر غریب دے نُور الهُدیٰ نبی ﷺ

دَ هر بشر طبیب دے نُور الهُدیٰ نبی ﷺ

کامله په حالات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبر ﷺ

رحمت ددي مردان دے رحمت دَ ټول جهان

احمده! عالیشان دے په هر چا مهربان

ښائسته په ټول عادات دے زمونږه پیغمبرﷺ

رحمت دَ کائنات دے زمونږه پیغمبرﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تابعدار دَ محمد ﷺ شهٔ

دُښمن هر ځائے کښې دَ بد شهٔ

دَ شیطان په لاره مهٔ ځه

تابعداره دَ اَحُد شهٔ

هر سنت دَ ژوند حصه کړه

په دے ښکلے ترابد شهٔ

دَ بدعت نه نفرت اُوکړه

لرے دَ مرتد شهٔ

رښا واخله دَ سنت

فکر منده دَ لحد شهٔ

هوښیاران وائی بد مهٔ کړه

دَ ښهٔ کار سره بلد شهٔ

اے احمده! وفادار شهٔ

تل ملګرے دَ احمد ﷺ شته

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ نبی ﷺ په شان جانان

نشتـــــــه نشتـــــــه پـــــه جهـــــان
نـــــۂ شتـــــه ښـــکـــلـــے پــــه صـــورت کښـــي
داســـــــے نشتـــــــــه يــــــو انســـــــان
نـــــۂ شتـــــه داســـے پــــه سيـــرت کښـــي
مهـــــريــــــانـــــــه عـــــاليشــــــان
هــــــر صِـــــفـــــت ســـــره مــــمـتـــــاز دے
وائـــــــى وائــــــى عـــــــالــــــمـــــــان
کــــــــۂ اخــــلاق دَ هـــــغـــــــــۂ ګـــــورے
ګـــــــــوره ګـــــــوره دا قــــــــــــرآن
هــــــــر ادا ئــــــي ده ښــــــائستـــــــــۂ
ګــــــل ګـــــلاب يـــــــا دَ ريــــــحــــــان
پــــــه خَـــوَلَـــــه کښـــي ئــــي خـــوشبـــو ده
مشك عـــــنبـــــر دَ هــــــر مـــــکـــــــان
مــــــرتبـــــــه ئــــــي ده اُوچتـــــــــــه
ده اُوچتــــــــه لــــــه آســــمــــــــان
زۂ احـــــــمـــــد ئــــــي مـــــدح خـــــوان يــــم
دا ســــــــے وائـــــــــى تــــــول مــــــــردان

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

دَ هــــــرچـــــــا دَ زړګــــــــى ســـــــر دے
دا زمـــــونــــــږه پيـــــغـــــمبـــــر ﷺ دے

هر بشر ته هغه ګران دے

نُور نبی آخر زمان ﷺ دے

دَ هر در مشك و عنبر دے

دا زمونږه پيغمبر ﷺ دے

هر بشر لره امام دے

رڼا نُور ماهِ تمام دے

بهترين په لرا و بر دے

دا زمونږه پيغمبر ﷺ دے

دَ هر چا دَ زړهٔ سكون دے

بهترين نه په ژوندون دے

هر يو قول ئي معتبر دے

دا زمونږه پيغمبر ﷺ دے

دَ هر چا دَ سر دے سيورے

بهترين نه دے كه ګورے

تل محبوب دَربَ اكبر دے

دا زمونږه پيغمبر ﷺ دے

ملائك ئي خدمتګار دي

هر طرف ته ئي انوار دي

نُور سره ئي رڼا نمر دے

دا زمونږه پيغمبر ﷺ دے

احمد وائم پرے درود
چې بنده دے دَ معبود
په لقب باندې سحر دے
دا زمونږه پیغمبر ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ نبیانو چې امام ﷺ دے
دا نبی خیر الانام ﷺ دے
کۀ عیسیٰؑ دے کۀ آدمؑ
کۀ عرب دے کۀ عجم
دَ هر در ماهِ تمام دے
دا نبی خیر الانام ﷺ دے
هر ولی ئې تابعداره
قدرمنده عزت داره
دَ هر چا دَرسلام دے
دا نبی خیر الانام ﷺ دے
خپله ربّ ئې کړی صفت
راشه دا دے حقیقت
نُور زمونږ دَ دین اسلام دے
دا نبی خیر الانام ﷺ دے
اُمتی ئې زۀ احمدیم

اُمّتــــــــی دَمــــــــحــــــــمــــــــد ﷺ کــــــریـــــم

ډیــــــر عـــــــالــــــی ئــــــي هــــــر مــــقـــــام دے

دا نبــــــــــی خیــــــــر الانـــــــــام ﷺ دے

★★★★★★★★★

تــمــت بــحــمــد الــلّٰــه تــعــالیٰ وبتــوفیــقــه

ربــنــا تــقـبــل مــنــا انك انت الســمیــع الـعـلیم وتـب

عـــلیــــنــــا انك انــــت التــــوّاب الـــرحیـــم★

وصــلــی الــلّٰــه تعالیٰ علی خیرخلقــه مـحـمـد

وآلـــــه واصـــحـــابـــه واهـــل بیتـــه اجـمـعـیـن

ومــن تبــعهــم بـــاحســـان الـــیٰ یــوم الــدیــن.

بسم الله الرحمٰن الرحيم

# دریمه برخه

## حمد باری تعالیٰ

ذات دَ پاك الله احد شته

لم یلد دا لم یولد شته

دا خالق مالك زمونږ دے

دا خالق دَ محمد ﷺ شته

دا خالق دَ هر بشر دے

دا خالق دَ نیك او بد شته

دا خالق دَ هر آسمان دے

دا خالق په هر بلد شته

اے احمده! یو دے یو دے

دا احد شته دا صمد شته

## حمد باری تعالیٰ

لویه خدایه هر انسان دے ستا محتاجه

هر کافر او مسلمان دے ستا محتاجه

هر نبی او رسول ستا دَ در محتاج دے

هم نبی آخر زمان ﷺ دے ستا محتاجه

بادشاهان چې دلته خومره دَ جهان دی

هر يو شاه دَ هر مکان دے ستا محتاجه

وزيران چې څومره دلته په جهان دي

هر وزير دَ هر يو شان دے ستا محتاجه

دا چې څومره په دُنيا کښې دي وليان

هر ولی ددې جهان دے ستا محتاجه

دا چې څومره په دُنيا کښې امامان دي

هر امام بنهٔ قدردان دے ستا محتاجه

عزت مند خلق چې څومره په دُنيا دي

دا مخلوق دَ هر يو آن دے ستا محتاجه

د دُنيا دَ در چې څومره دا سخيان دي

هر سخی هر مهربان دے ستا محتاجه

د دُنيا دَ در چې څومره عالمان دي

دَ دوی دلته هر بيان دے ستا محتاجه

دا ښُکلا ددې جهان دَ هر يو در

هر يو ګل دَ ګلستان دے ستا محتاجه

دَ يخنی ګرمی سره هر يو سپرلے هم

په بهار پسے خزان دے ستا محتاجه

هر ماشوم ددې جهان په هر يو در

دَ بډها سره هر ځوان دے ستا محتاجه

فرښتے دی ستا محتاجه دَ هر در

تول مخلوق دَ پاس آسمان دے ستا محتاجه

هر یو څیز دَ کائنات دے ستا محتاجه

دا احمد د دې مردان دے ستا محتاجه

## حمد باری تعالیٰ

رهنما دَ هر بشر شته

هر بشر دَ پاسه سر شته

ذات ئې یو دے په دُنیا کښې

یو دے یو ښۀ معتبر دے

نۀ دَ چا دَ در محتاج دے

یو بې نیازه ربَ اکبر شته

دَ هر یو ماښام خالق دے

یو خالق دَ هر سحر شته

دَ بادشاه وزیر دُنیا کښې

مُرئی دَ هر یو در شته

هر امام ولی عالم له

د هر چا د در رهبر شته

زمکې بره آسمانونه

یو مالك دَ لر او بر شته

دَ باغونو لویو غرونو

یو مالك دَ سمندر شته

دَ ښـــائسته ښـــائسته رنــګـــونـــو
جـــوړونـــکـــے ښـــهٔ خبـــر شتــــه
اے احـــمــــده ! هـــغـــــه يـــو دے
مهـــربـــانـــه ميـــنـــه ور شتـــه

## حمد باري تعالیٰ

هـر ځيـز ددې دُنيـا پـه هـر مکـان دے يـادوی
مـولـیٰ هـريـو مـخلوق دَ پاس اٰسمان دے يادوی
نـاری دے کـه نُوری دے ستـانـه غواړی هرساعت
مـحتـاج دے هـر بشـر سـتـا دَ دُنيـا پـه حقيقت
غـريـب دے دَ دُنيـا او هـريـو خـان دے يـادوی
مـولـیٰ هـريـو مـخلوق دَ پاس اٰسمان دے يادوی
ذرَه ذرَه دُنيـا کښـې هـر طـرف تـه دَ جهـان
هـوا کښـې دغـه بـره الـوتـونـکی ټول مـارغـان
دا ټـول پـه هـر مـقـام ددې جهـان دے يـادوی
مـولـیٰ هـريـو مـخلوق دَ پاس اٰسمان دے يادوی
دُنيـا کښـې هرطـرف تـه چې دی څومره مخلوقـات
مـوجـود چې پـه دُنيا کښـې څومره دی دا موجودات
هـر بـوټـی دَ دُنيـا هـريـو ميـدان دے يـادوی
مـولـیٰ هـريـو مـخلوق دَ پاس اٰسمان دے يادوی
مـخـلـوق دَ دريـابـونـو ټـول مـخـلـوق دَ سـمـنـدر

مخلوق دَ څنګلونو تول مخلوق دَ هريو در

په چُپه خُله دا هر څهٔ په هرآن دے يادوي

مولىٰ هريو مخلوق دَ پاس آسمان دے يادوي

ولي دے کهٔ نبي دے هريو ستا ذکر کوي

کهٔ نيك دے کهٔ عاصي دے هريو ستا ذکر کوي

احمد علي دُنيا کښې په مردان دے يادوي

مولىٰ هريو مخلوق دَ پاس آسمان دے يادوي

## حمد باري تعالىٰ

لويه خدايه هر بشر دے ستا بنده

هر رسول او پيغمبر دے ستا بنده

کهٔ ولي دے کهٔ عالم ددې جهان دے

صحابي دَ هريو در دے ستا بنده

دَ غريب سره مالدار هريو بشر

دَ دُنيا هريو افسر دے ستا بنده

وزيران او بادشاهان ددې جهان

هريو فرد دَ بحر و بر دے ستا بنده

دا چې څومره په دُنيا کښې امامان دي

هر امام دَ لر او بر دے ستا بنده

کهٔ ظالم دے کهٔ مظلوم ددې جهان دے

هر سخي دَمال و زر دے ستا بنده

هر صادقه وفاداره ستا بنده دے

هر کاذبه هر بدتر دے ستا بنده

هر کافر سړے هم ستا ددر محتاج دے

هر یو فرد دَهر لښکر دے ستا بنده

ملائکه بندیګان دي ستا د در

هر یو جن پیرے دَنظر دے ستا بنده

دا احمد علی دُنیا کښي هر ساعت

په هر ځائے کښي په هر ور دے ستا بنده

## حمد باري تعالیٰ

پیدا کړے هر بشر تا لویه خدایه

هر غریب سره افسر تا لویه خدایه

آسمانونه عرش کرسی لوح وقلم

پیدا کړے هر یو در تا لویه خدایه

جنتونه هر دوزخ تا پیدا کړے

هر نعمت هر یو ګوهر تا لویه خدایه

ملائك دے دجهان تول پیدا کړي

پیریان تول پیرے دَنظر تا لویه خدایه

دریابونه ونی بوتی دَجهان

دَدُنیا هر سمندر تا لویه خدایه

دانبیان ولیان دي تول تا پیدا کړي

هر امام دَ بحر و بر تا الویه خدایه

کتابونه دا ټول تا دی نازل کړي

پیدا کړے پاس قمر تا الویه خدایه

ستوری ټول تا پیدا کړی دَ آسمان دی

منوَّره بره نمر تا الویه خدایه

ورځے شپے دَ جهان تا دی پید کړي

پیدا کړے هر سحر تا الویه خدایه

مشك عنبر دے دَ جهان تا پیدا کړي

هر یو ګل کړه معطر تا الویه خدایه

دا احمد تا پیدا کړے په مردان کښي

پیدا کړے لر او بر تا الویه خدایه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زار درنه شم زار نبی ﷺ، ګرانه عالیشانه

ګرانه ګرانه ګرانه، زار شمه لتانه

نُور دَ ټول جهان ئي ته

نُور دَ هر آسمان ئي ته

نُور دَ لامکان ئي ته

نُور ئي نوراني نبی ﷺ، ګرانه قدردانه

زار درنه شم زار نبی ﷺ، ګرانه عالیشانه

ستا هر یو قدم اُوچت

ستا په نُور حرم اُوچت

هم عرب عجم اُوچت

لوئے مقام دے ستا نبی ﷺ، پاس له هر آسمانه

زار درنه شم زار نبی ﷺ، ګرانه عالیشانه

ستا ده هر ادا ښکلے

ستا ده حق وینا ښکلے

دا ده په هر خوا ښکلے

نشته نشته دغه شان، اے نبی سلطانه ﷺ

زار درنه شم زار نبی ﷺ، ګرانه عالیشانه

ستا هر یو صفت اُوچت

نُور دَ هدایت اُوچت

نُور دَ شریعت اُوچت

سپین ښکلے صورت لرے، ښکلے مهربانه ﷺ

زار درنه شم زار نبی ﷺ، ګرانه عالیشانه

حُسن دَ دُنیائي تهٔ

ښکلے په هر خوائي تهٔ

ښکلے مقتدائي تهٔ

ښکلے ئي محبوب نبی ﷺ، دوست دَ پاك سبحانه

زار درنه شم زار نبی ﷺ، ګرانه عالیشانه

تهٔ دَ مخلوقات ئي خوښ

تــــــــۂ دَ مـــــوجـــــودات ئــــي خــــوښ
ذات او پـــــــه صـــــفـــــات ئــــي خــــوښ
تــۂ مـحبـوب زمـائـي هم، ګرانـه پـه مـا ګرانـه
زار درنــه شـم زار نبـی ﷺ، ګـرانـه عـاليشـانـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ميـــاشـــت ده ښـــائسـتـــۂ ښـــۂ قـدرانــــه
پـــــه کښـــي پيــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے
ده عـــــزتـــمـــنـــده ښـــــۂ عــــاليشـــانــــه
پـــــه کښـــي پيــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے
دغـــــــه سپـــــرلـــــے دَ هــــــريــــــو دار دے
دغـــــــه سپـــــرلـــــے دَ هــــر ګــــلــــزار دے
دغـــــــه ښـــــائســــــت دَ هــــــرديـــــار دے
ميـــاشـــت ده دا ښـــکـــلـــے اے مســـلـــمـــانـــه!
ميـــاشـــت ده ښـــائسـتـــۂ ښـــۂ قـدرانــــه
پـــــه کښـــي پيــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے
ده عـــــزتـــمـــنـــده عـــــاليشـــــانـــــــه
پـــــه کښـــي پيــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے
دغـــــــه سپـــــرمے دَ بـــــحـــــرو بـــــر دے
پـــــه هـــــر صـــــفـــــت ښـــــۂ مـعـطَـــر دے
لـــــکـــــه خـــوشبـــو کښـــي مشك و عـــنبـــر دے

راشــــــه خبـــر شــــــۀ اے انســــانـــــه!

میـــــاشـــت ده ښــــائستـــــۀ ښـــــۀ قـــدرانــــه

پــــــه کنبـــــي پیـــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے

ده عــــزتــمــنــدہ ښـــــۀ عــــالیشــــانـــــه

پــــــه کنبـــــي پیـــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے

دغـــــــه سپــــرلـــــے هـــم دَ مـــکـــي دے

دغـــــــه سپــــرلـــــے د مـــدیـــنـــي دے

ددي جهـــــــان دَ هـــــــر حـــصـــي دے

ځــــان کـــړه خبـــر تـــریــنـــه اے ځـــوانـــه!

میـــــاشـــت ده ښــــائستـــــۀ ښـــــۀ قـــدرانــــه

پــــــه کنبـــــي پیـــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے

ده عــــزتــمــنــده ښـــــۀ عــــالیشــــانـــــه

پــــــه کنبـــــي پیـــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے

دغـــــــه سپــــــرے دَ هـــــــر قـــلـــم دے

اثــــــر اغستـــــے تــــرے عــــــالــــم دے

هــــغــــه عـــرب دے کــــۀ عـــجـــم دے

احـــــمـــــد خبـــره کـــړه آســــانــــــه

میـــــاشـــت ده ښــــائستـــــۀ ښـــــۀ قـــدرانــــه

پــــــه کنبـــــي پیـــدا چـــي مـــحـــمـــد ﷺ دے

ده عــــزتــمــنــده ښـــــۀ عــــالیشــــانـــــه

په کښې پیدا چې محمد ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اول هر ځائے کښې ذکر دَ اللّٰه مزه کوی

بیا ذکر ورپسے دَ مصطفیٰ ﷺ مزه کوی

قراٰن کښې اول ذکر دَ اللّٰه راغلے دے

بیا ذکر ورپسے دَ مصطفیٰ ﷺ راغلے دے

دا ذکر په هر ځائے کښې په هرخوا مزه کوی

اول هر ځائے کښې ذکر دَ اللّٰه مزه کوی

بیا ذکر ورپسے دَ مصطفیٰ ﷺ مزه کوی

کلمه کښې ذکر شته دے دَ اللّٰه غنی سبحان

بیا ذکر ورسره دے دَ نبیانو دَ سلطان ﷺ

هر ځائے کښې هر ساعت دغه بیا بیا مزه کوی

اول هر ځائے کښې ذکر دَ اللّٰه مزه کوی

بیا ذکر ورپسے دَ مصطفیٰ ﷺ مزه کوی

په مونځ کښې اول ذکر دَ اللّٰه غنی غفار دے

بیا ذکر ورپسے دَ محمد خیر الابرار ﷺ دے

قسم دے دغه ذکر دَ طٰهٰ ﷺ مزه کوی

اول هر ځائے کښې ذکر دَ اللّٰه مزه کوی

بیا ذکر ورپسے دَ مصطفیٰ ﷺ مزه کوی

اَذان کښې اول ذکر دَ اللّٰه ربُّ العزت دے

بیــا ذکــرورپســې دَ مـحـمـد ﷺ دَ رســالــت دے

احــمــده ! ذکـــر دغـــه زمـــا ستـــا مـــزه کــوی

اول هـــر ځـــائــې کښــې ذکــر دَ الــلّـــه مــزه کــوی

بیــا ذکــرورپســې دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ مـزه کــوی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ذکـــر دَ پـــاك الــلّـــه ربُّ الــعـــزت مـــزه کــوی

بیـــا ذکـــر دَ رســول ﷺ دَ رســـالـــت مـــزه کــوی

دَ زړۀ عـــلاج دے دغـــه پـــه دُنیـــا کښـــې دَ بیـمــار

دَ زړۀ ســـکـــو ن دے دغـــه پـــه دُنیـــا کښـــې دَ ابــرار

قســـم دے دغـــه ذکـــر هـــر ســـاعـــت مـــزه کــوی

ذکـــر دَ پـــاك الــلّـــه ربُّ الــعـــزت مـــزه کــوی

بیـــا ذکـــر دَ رســول ﷺ دَ رســـالـــت مـــزه کــوی

دَ زړۀ زنګ هــم پــه دے ســره ختـمیــږی دَ جهــان

دَ زړۀ زنګ هــم پــه دے ســره ختـمیــږی دَ انســـان

قســـم دے پـــه دُنیـــا دا عبـــادت مـــزه کــوی

ذکـــر دَ پـــاك الــلّـــه ربُّ الــعـــزت مـــزه کــوی

بیـــا ذکـــر دَ رســول ﷺ دَ رســـالـــت مـــزه کــوی

قســـم دے دا دواده هـــم غـــذا دَ هـــر بشـــر

قســم دے دا رحــمــت دے پــه دُنیــا کښــې دَ هــر در

قســـم دے دَ دُنیـــا دغـــه نــعــمــت مـــزه کــوی

ذکــــر دَ پـــاك الـــلّـــه ربُّ الـــعـــزت مـــزه کـــوی

بیـــا ذکـــر دَ رســـول ﷺ دَ رســـالـــت مـــزه کـــوی

نیـــکـــان پـــه دې ســـره دی مـــعـــطَّره پـــه هـــر در

نیـــکـــان پـــه دې ســـره دی مـــنـــوَّر پـــه هـــر در

قســـم دے دَ دُنیـــا دغـــه دولـــت مـــزه کـــوی

ذکــــر دَ پـــاك الـــلّـــه ربُّ الـــعـــزت مـــزه کـــوی

بیـــا ذکـــر دَ رســـول ﷺ دَ رســـالـــت مـــزه کـــوی

ښـــائستـــۀ پـــه دغـــې ذکـــر ددُنیـــا دی ټول کســـان

احـــمد عـــلـــی ! ښـــائستـــۀ دے په دې ذکر تول مـــردان

ذکـــر دغـــه پـــه میـــنـــه مـــحبـــت مـــزه کـــوی

ذکــــر دَ پـــاك الـــلّـــه ربُّ الـــعـــزت مـــزه کـــوی

بیـــا ذکـــر دَ رســـول ﷺ دَ رســـالـــت مـــزه کـــوی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ذکـــر پـــه کـــائـــنـــات کـــښـــې دَ رحـــمـــان مـــزه کـــوی

بیـــا ذکـــر دَ نبـــی آخـــرزمـــان ﷺ مـــزه کـــوی

قـــرآن دَ پـــاك الـــلّـــه پـــه دے خبـــره دے گـــواه

جهـــان دَ پـــاك الـــلّـــه پـــه دے خبـــره دے گـــواه

حَسِیـــن پـــه هـــر صـــفـــت دغـــه بیـــان مـــزه کـــوی

ذکـــر پـــه کـــائـــنـــات کـــښـــې دَ رحـــمـــان مـــزه کـــوی

بیـــا ذکـــر دَ نبـــی آخـــرزمـــان ﷺ مـــزه کـــوی

هـــر څيـــز دَ کـــائـنـــات ددې خبـري کـړې اقـــرار
هـــر څيـــز دَ کُـــل جهـــات ددې خبـري کـړې اقـرار
پـــه ژبـــه دَ مـــخـلـوق دغـــه اعـلان مـــزه کـوی
ذکـــر پـــه کـــائـنـــات کښـــې دَ رحـمـان مـزه کوی
بيـــا ذکـــر دَ نبـــی اخـــرزمـــان ﷺ مـــزه کـوی
ګـواه پـه دے خبره هم جبرئيـلؑ او ميـکائيـلؑ دے
ګـــواه پـــه دے خبـــره اســرافيـلؑ اوعـزرائيـلؑ دے
مـحبـوب دَ ټـول جهـــان دَ پـاك سبحـان مزه کوی
ذکـــر پـــه کـــائـنـــات کښـــې دَ رحـمـان مـزه کوی
بيـــا ذکـــر دَ نبـــی اخـــرزمـــان ﷺ مـــزه کـوی
احـمـد عـلـــی ! اقـرار دې خبـرے کـړے تـا دے
اقـــرار دې خبـــرے هـــر چـا کـړے پـه دُنيـا دے
نبيـانـو کښـې دَ دوجهـان سـلـطـان ﷺ مزه کوی
ذکـــر پـــه کـــائـنـــات کښـــې دَ رحـمـان مـزه کوی
بيـــا ذکـــر دَ نبـــی اخـــرزمـــان ﷺ مـــزه کـوی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لـويـــه خـدايـــه دا ژوندون زمـا ښـائستـــۀ کـړے
نـــورانـــی ئـــې دَ نبـــی ﷺ پـــه طـــريـقـــه کـړے
بهتـــريـــن ئـــې دَ نبـــی ﷺ پـــه هـــر ادا کـــړے
عـــزت مـنـد ئــې دَ دُنيـــا پـــه هـر حصـه کـړے

هر وینا کښې مې تابع دَ محمد ﷺ کړے
په سنت سره ښائسته مې ګلدستۀ کړے

دَ نبی ﷺ په نُور رنړا مې نُور رنړا کړے
رنړا بلله مې دَ شپے یوه ډیوه کړے

هر ادا دَ پاك رسول ﷺ زما نصیب کړے
بهترین مې دَ نبی ﷺ په تذکره کړے

دَ احمد علی وینا دغه دُعا ده
دا قبوله اے مولیٰ په هر حصه کړے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ملګرتیا په دے دُنیا کوه دَ حق
تل وینا په دے دُنیا کوه دَ حق

تل سنت دَ محمد ﷺ دَ لارے مل کړه
اقتدا په دے دُنیا کوه دَ حق

ګنده کار چې دَ جهان په در اُنکړے
کار صفا په دے دُنیا کوه دَ حق

دَ ابلیس لعین سره وفا وُنکړے
تل وفا کوه په دے دُنیا کوه دَ حق

اے احمده! حق ښکاره کړه په هر در
کار هم دا په دے دُنیا کوه دَ حق

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راشــــــه راشــــــه اقتـــدا اُکـــړه دَ حـــق
پـــه دُنیـــا کښــي مــلــګـــرتیـــا اُکـــړه دَحـق
حـــق نبـــی ﷺ دے حـــق ئـــي کـــاردے دَ جهـــان
کـــار دُنیـــا کښـــي دلتـــه دا اُکـــړه دَ حـــق
حـق نبـی ﷺ دے حق هـر قـول دَپاك نبی ﷺ دے
راشــــــه راشــــــه حـــق ویـــنـــا اُکـــړه دَ حـــق
حـــق نبـــی ﷺ دے دیـــن ئـــي حـــق دے دَ جهـــان
بـــي وفـــا نشـــے وفـــا اُکـــړه دَ حـــق
حـــق قـــراٰن دے حـــق ســنـت دَ مـحـمـد ﷺ دے
اقتـــدا دي ړنـــا اُکـــړه دَ حـــق
اے احـمـده ! حـق چـي پـرے نـهٔ دے هیـڅ کـلـه
مـــلـــګـــرتیـــا دلتـــه هـــرخـــوا اُکـــړه دَ حـــق

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نـصیـب چـي شـی دچـا دلتـه مـزے دَ مدینـي
یـادیـږی تـل هـغـه تـه ورځـے شپـے دَ مدینـي
نصیـب چـي شـی دَ چـا دلتـه مسکن دغـه حسین
نـصیـب چـي شـی دَ چا دلتـه چمن دغـه حسیـن
هیـریـږی نـهٔ هیـڅ کـلـه تـذکـرے دَ مدینـي
یـادیـږی تـل هـغـه تـه ورځـے شپـے دَ مدینـي

نصیب چې شي دَ چا دلته دیدن دَ مصطفیٰ ﷺ
نصیب چې شي دَ چا دلته چمن دَ مصطفیٰ ﷺ
هیرېږي کله دغه نظارې دَ مدینې
یادېږي تل هغه ته ورځې شپې دَ مدینې
نصیب چې شي دَ چا دلته خوشبو د دغې در
قسم دې نُوراني به وي دُنیا کښې معطّر
دَ نُور نه ډکې دي کوڅې دَ مدینې
یادېږي تل هغه ته ورځې شپې دَ مدینې
نصیب چې شي دَ چا دلته رڼا دَ دغې در
احمد وائي دُنیا کښې په دُنیا دې بختور
ښائسته ښکلې دي ټولې منارې دَ مدینې
یادېږي تل هغه ته ورځې شپې دَ مدینې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ سنت په رنګ کښې رنګ شۀ
هر باطل سره په جنګ شۀ
دَ شیطان سره کینه کړه
دَ مولیٰ دَ در ملنګ شۀ
دَ ظالم نۀ لرې اُوسه
دَ مظلوم سره په څنګ شۀ
دَ نیکۍ په کار کښې مست شۀ

لکه بوتی مست دَ بنګ شۀ
دَ رسول ﷺ په دین مئین شۀ
حیا داره دَ پالنګ شۀ
هر بدعت کار دے عبث
لرے لرے ددې سنګ شۀ
دَ سنت نُور کښې غوپه شۀ
مرتبه کښې راشه دنګ شۀ
اے احمده! نُور دا نُور دے
لائق راشۀ دَ هر ننګ شۀ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چې په لاره څوك دَ سیدالوریٰ ﷺ شی
قدر منده به هغه دَ دې دُنیا شی
عزت منده د دُنیا به په هر در شی
چې نصیب ئې دَ رسول ﷺ د دربا شی
هر یو غم به ددۀ لرے دَ جهان شی
نُورانی چې څوك په نُور دَ مصطفیٰ ﷺ شی
خوشبودار به په جهان کښې تمام ګرځی
معطره چې په ذکر دَ طٰهٰ ﷺ شی
دَ دُنیا فکر به لرے ئې دَ زړۀ شی
فکر مند چې په دُنیا کښې دَ عقبیٰ شی

دَعقبیٰ فکر دے بڼۀ تالـه احمده !
دا فانی دُنیا ده یوورځ به فنا شی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُور سنت دے په هر کُور کښې
رڼا ګانې دی په ګور کښې
دَجهان دَدر عطر دی
مشك عنبر دی په هر لور کښې
دا ښُکلا دَهر بشر ده
پکاریږی هر پیغور کښې
دَعزت دَسر دا تاج دے
دا قوَت دے په هر زور کښې
اے احمده ! دا ممتاز دے
په اطراقو دا خلور کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر سنت ښُکلا جمال دے
هر سنت دَبشر ډهال دے
هر سنت کښې تل عزت دے
نُور دَحال او استقبال دے
کامیابی دَهر بشر ده
په دې نُور ښائسته بلال ؓ دے

داګـــــلـــــونــــــه دَ چـــــمــــن دی
دا یـــــــو نُـــــــور دَ اعتـــــــدال دے
دا رنــــــــــا یـــــــوه ډیــــــوه ده
کـــــۀ مـــــاضـــــی دے او کـــــۀ حـــــال دے
هـــــرســــاعـــــت پــــه دې کښــــې نُـــور دے
نُـــــور دُنیـــــا کښــــې لامثــــــال دے
واخــــلــــــه واخــــلـــــه دا احـــــمــــده!
قیـــــمتـــــی لــــــه هـــــریـــــو مـــــال دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پــــــه ســــنــــت مــــې بـــدن رنګ دے
دَ بـــــاطــــل ســـــره پـــــه جـــنګ دے
هـــــر بـــدعـــت نــــه کـــړی نـــفـــرت
هـــــریـــــو نیك ســـــره پــــه څـــنګ دے
دَ شیـــــطــــان نــــۀ ئـــــې نـــفـــرت دے
ورلـــــه کـــــانـــــړو کښــــې یـــو ســنګ دے
پــــــه رســـــول الـــلّـــــه ﷺ مــــئیــــن دے
ددې درځـــــکــــــه مـــــلــــنګ دے
پــــــه اســـــلام بــــانــــدې مــــئیــــن دے
دَ اســــــــلام دَ درپتــــــــنګ دے
پـــــــه ســــنــــت دے خــــوشبــــوداره

دا قابل څکه دَ ننګ دے

اے احمده! په سنت دا

عزت مند دے څکه دنګ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ سنت بدله ثواب دے

بهترینه په هر باب دے

هر یو خیز په دے ښائسته دے

کهٔ أفتاب دے کهٔ مهتاب دے

دَ ګلونو دا ښُکلا ده

کهٔ ریحان دے کهٔ ګلاب دے

دا خوشبو دَ ټول جهان ده

دا یو ډهال دَ هر عذاب دے

دا سکون دَ هر یو کور دے

دا دَ هر یو سوال جواب دے

دا یو لعل ددي جهان دے

هغه لعل دے چي نایاب دے

دا دے تاج دَ هر عزت

ډیر زیات ښکلے بي حساب دے

اے احمده! نُور دے نُور دے

دا بیان دَ هر کتاب دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محمد ﷺ هغه محمود دے
تول خلقو ته مقصود دے
په دُنیا کښې مدینه کښې
نورانی ئې تول وُجود دے
دَ شیطان دے لوئې دُښمن
په لقب سره مسعود دے
دَ برکت هر ځائے سبب دے
په کُوم ځائے کښې چې موجود دے
دَ بدعت نهٔ ئې نفرت دے
لرے هر ځائے دَ مردود دے
هر سلام په مینه اخلی
ذکر شوے په درود دے
اے احمده! خوښ دَ خلقو
خوښ په خپله دَ معبود دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چې محبوب دَ دوجهان دے یار زما دے
دا محبوب دَ پاك سبحان دے یار زما دے
چې محبوب دَ ملائکو دَ اسمان دے
دا عالی دے عالیشان دے یار زما دے

چې امام ﷺ دَ مُرسلانو په دُنیا دے
دا نبی آخرزمان ﷺ دے یارزما دے
چې رحمت دَ هر بشر دَ هر یو کُور دے
دَ سر سېوري مهربان دے یارزما دے
چې شافع دے دَ محشر په لوئے میدان
دا ښائستۀ حسین انسان دے یار زما دے
چې ساقی دے دَ کوثر هغه احمده !
حق ئې حق چې تول بیان دے یارزما دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محمد ﷺ دَ محبوبانو دے محبوب
داسے نشته په دُنیا کښې بل مطلوب
هر صفت ئې په دُنیا کښې عالشیان دے
بهترین دے دَ دُنیا په هر اُسلوب
په رحمت دَ دوجهان سره هغه یادیږی
هر صفت ئې په دُنیا کښې خُوب دے خُوب
اولین او اخرین ددې جهان دے
په سکون سره یادشوے دَ قُلُوب
اے احمده ! هر صفت سره ښائستۀ دے
صبرناك دے هم شاکر لکه ایوب

★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت
شائسته شُکلے فقرے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان ترینه قربان ددي جهان زما بدن
قربان ترینه قربان په دي دُنیا هریو چمن
قربان دَ نُور جلوے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان ترینه قربان ټول آسمانونه دَ جهان
قربان ترینه قربان دا ټول ګلونه دَ جهان
قربان دَ هر نعرے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان ترینه قربان زما یاران دَ ټول جهان
قربان ترینه قربان دغه یاقوت دغه مرجان
قربان دَ مسئلے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت
بُنیاد دَ هر بُنیاد دے په دُنیا دَ هریو در
علاج دَ هر فساد دے په دُنیا دَ هریو در
قربان هرے جملے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت
یو سل پرے آیاتونه دَ قرآن دي ټول شاهد

دوه سوه حدیثونه دَ جهان دی تول شاهد
خبر یمه له دے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت
احمد علی ! قربان ترے په دُنیا کښې په هر در
قربان ترینه قربان شه دَ دُنیا هر یو سحر
قربان دَ نُور جلوے نه زۀ دَ ختم نبوت
قربان دَ عقیدے نه زۀ دَ ختم نبوت

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نعره دَ نُور او دَ عظمت ده
نعره دَ ختم نبوت ده
نعره دَ نُور او دَ جمال ده
نعره دَ حال او استقبال ده
رڼا هر ځائے دَ هدایت ده
نعره دَ ختم نبوت ده
نعره دَ هر یو امتی ده
دا د هر څۀ نه قیمتی ده
وینا هم دا دَ شریعت ده
نعره دَ ختم نبوت ده
نعره ده دا دَ صالحانو
دَ لویو لویو عالمانو

نعره قسم دے دَ عزت ده

نعره دَ ختم نبوت ده

نعره زمونږ دَ هر امام ده

دا دَ خواصو او عوام ده

نعره هر ځائے دَ صداقت ده

نعره دَ ختم نبوت ده

نعره دَ هرې و صحابیؓ ده

دَ عجمی او عربی ده

نعره په جمع دَ امت ده

نعره دَ ختم نبوت ده

نعره دا دلته دَ احمد ده

نعره زمونږه دَ ابد ده

نعره دا دلته هر ساعت ده

نعره دَ ختم نبوت ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قربان دَ هریان نه زۀ دَ ختم نبوت

قربان زۀ دَ لوئي شان نه زۀ دَ ختم نبوت

قربان ترینه قربان دی آسمانونه دَ جهان

قربان ترینه قرآن دی چمنونه دَ جهان

قربان دَ حق اعلان نۀ زۀ دَ ختم نبوت

قربان زهٔ دَلوئي شان نه زهٔ دَ ختم نبوت

قربان ترینه قربان دی علماء ددې جهان

قربان ترینه قربان دی اولیاء ددې جهان

قربان دَ نُور عرفان نه زهٔ دَ ختم نبوت

قربان زهٔ دَلوئي شان نه زهٔ دَ ختم نبوت

قربان ترینه قربان دے هریو حُسن دَ هردر

قربان ترینه قربان دے هریو حُسن دَ بشر

قربان دَ حق نشان نه زهٔ دَ ختم نبوت

قربان زهٔ دَلوئي شان نه زهٔ دَ ختم نبوت

قربان ترینه قربان دی ټول اصحابؓ دَ محمد ﷺ

قربان ترینه قربان دی ټول احباب دَ محمد ﷺ

قربان هر مهربان نهٔ زهٔ دَ ختم نبوت

قربان زهٔ دَلوئي شان نه زهٔ دَ ختم نبوت

قربان ترینه قربان شهٔ د قلم دغه بیان

احمد علی ! قربان شهٔ ترینه هرځائے هر مکان

قربان دَ ربّ احسان نهٔ زهٔ دَ ختم نبوت

قربان زهٔ دَلوئي شان نه زهٔ دَ ختم نبوت

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په مونږه ګران دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ وطن دے

ځکه چې داګُور کلے دَ پاك نبی ﷺ چمن دے

دا دے چمن دَ پاک رسول ﷺ

دا دے مسکن دَ پاک رسول ﷺ

دا دے مدفن دَ پاک رسول ﷺ

علاج دُنیا کښې دَ هر روح دَ هر یو تن دے

ځکه چې دا کُور کلے دَ پاک نبی ﷺ چمن دے

دلته اصحابؓ دَ محمد ﷺ شته

رښا کتاب دَ محمد ﷺ شته

ښکلی احبابؓ دَ محمد ﷺ شته

کُور کلے دغه دَ حُسینؓ او دَ حَسنؓ دے

ځکه چې دا کُور کلے دَ پاک نبی ﷺ چمن دے

دلته انوار دَ مصطفیٰ ﷺ دی

انوار خوارۀ دلته هر خوا دی

څیزونه تول دلته رښا دی

ښار دے دا ښار دَ هر شیطان نه په اَمن دے

ځکه چې دا کُور کلے دَ پاک نبی ﷺ چمن دے

دلته جنت دَ مصطفیٰ ﷺ شته

عالی نسبت دَ مصطفیٰ ﷺ شته

عالی رحمت دَ مصطفیٰ ﷺ شته

قدرمند هر ځائے دَ رسول ﷺ په پاک لمن دے

ځکه چې دا کُور کلے دَ پاک نبی ﷺ چمن دے

مـــدیــنـــــه ښــکـــلـــې ئــې ګــفــتـــاردے
ذکـــــرئــــې ښــــکــــلــــې مــــزیــــداردے
احــــــمـــــــده! ذکـــــــرد بهــــــــــاردے
ښکلې هرځائے دَپاك رسول ﷺ په پاك بدن دے
ځکـه چې داګـُور کلے دَ پاك نبـي ﷺ چمن دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زلفـے تـورے تورے مصطفیٰ ﷺ درسره خوند کوی
تـورے تـورے زلـفـے پـه هـر خـوا درسره خوندکوی
ښـکلی دی ښائسته دی خورم قسم په تول جهان کښې دا
ښـکلـی دی ښائستـه دی په مکان او لامکان کښې دا
دغــه تـورے زلـفــے پــه دُنیـا درسره خـونـد کـوی
زلـفـے تـورے تورے مصطفیٰ ﷺ درسره خوند کوی
ښـکلی پـه رکوع کښې دا دی ښکلی په قیام کښې دا
ښـکلـی دی دا ښـکلـی د دُنیا پـه هـر مقام کښې دا
مـخ بـانـدے خورے بدرالدجیٰ ﷺ درسره خوند کوی
زلـفـے تـورے تورے مصطفیٰ ﷺ درسره خوند کوی
یـا دے پـه هـرلـور بانـدې دی یادې هرآسمان کښې دا
دغـــه شـان هـم یـادې دی دَ پاك اللّـه قـرآن کښې دا
زلـفـے خـوشبـودارے مـجتبیٰ ﷺ درسره خوند کوی
زلـفـے تـورے تورے مصطفیٰ ﷺ درسره خوند کوی

يادے دا احمد کړے په اشعارو کښې مردان کښې نن
ذکر ئې دے شوے دَ دُنيا په هر مکان کښې نن
زلفے حُسندارے بۀ اعلیٰ درسره خوند کوی
زلفے تورے مصطفیٰ ﷺ درسره خوند کوی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَزړۀ سکون دَ زړۀ قرار
زما دے سيَدالابرار ﷺ
سکون راحت دَ هر بشر
سکون راحت دَ هريو در
سکون دُنيا کښې دَ هر ښار
زما دے سيَدالابرار ﷺ
سکون دُنيا کښې بۀ تمام
دُنيا کښې نُورعالی مقام
سکون دَ هر محفل دربار
زما دے سيَدالابرار ﷺ
سکون دُنيا کښې دَ غريب
دَ هريو دردلته طبيب
دَ هر بشر دلته غمخوار ﷺ
زما دے سيَدالابرار ﷺ
سکون دَ ټولو عاشقانو

سکون دَ ټول عالمانو
دوست دَ مولیٰ غني غفار
زما دے سیّد الابرار ﷺ
دَ هر کوخې لارے رڼا هم
دَ هر کوخې لارے ښُکلا هم
رهبر دُنیا کښې دَ هر لار
زما دے سیّد الابرار ﷺ
سکون احمده ! دَ نیکانو
امام ﷺ دُنیا کښې دَ نبیانو
په وجود ټول دے خوشبودار
زما دے سیّد الابرار ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنیا کښې پاك رسوله ! ﷺ عاشقان دے یادوي
هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوي
هر ځائے کښې هر ساعت کوی ستا ذکر عاشقان
هر ځائے کښې هر ساعت کوی ستا ذکر امتیان
په مینه محبت هر مسلمان دے یادوي
هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوي
هر ځائے کښې هر ساعت کوی ستا ذکر اولیاء
هر ځائے کښې هر ساعت کو ی ستا ذکر علماء

دینداره په دُنیا کښې تهول کسان دے یادوی

هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوی

صادق سره دُنیا کښې یادوی دے تهول عرب

عرب دے یادوی په بهترین عالی نسب

په دے وصف سره تهول عجمیان دے یادوی

هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوی

امین دے یادوی دَدې دُنیا تهول عربیان

حسین دے یادوی ددې دُنیا تهول عربیان

لقب سره تهول خلق عالیشان دے یادوی

هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوی

خاتم دے یادوی تهول په لقب دَ مرسلانو

خاتم دے یادوی په دے دُنیا کښې دَ نبیانو

شاهان دزمانے ددې جهان دے یادوی

هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوی

نیازین دے یادوی تهول مخلوقات دَ پاك اللّٰه

هر ځائے کښې هر ساعت تهول موجودات دَ پاك اللّٰه

عالی ئې په صفت ځکه سلطان دے یادوی

هر ځائے کښې هر ساعت په هر مکان دے یادوی

محبوب دے یادوی دَ مخلوقاتو دا مخلوق

مطلوب دے یادوی دَ مخلوقاتو دا مخلوق

رحمت دَ هر يو كور دَ هر انسان دے يادوي

هر ځائے کښي هر ساعت په هر مکان دے يادوي

خوشبو دے يادوي په دے دُنيا کښي هر بشر

دُنيا کښي درته وائي دَ دُنيا دَ در سحر

احمد وائي تول خلق په مردان دے يادوي

هر ځائے کښي هر ساعت په هر مکان دے يادوي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ نبي ﷺ ښکلے روضه ، دَ انوارو ده چينه

مدينه ده مدينه ، په کښي شته دے سکينه

دلته هر ځائے دے رحمت

دا دے ځائے دَ محبت

دا دے کُور دَ برکت

په دُنيا کښي دے يو لعل ، دَ ګتمے ده نګينه

مدينه ده مدينه ، په کښي شته دے سکينه

دا دے کور دَ پاك نبي ﷺ

دَ عثمانؓ اودَ عليؓ

دَ دُنيا دَ هر ولي

دَ نفاق ګند نه صفا ، دا صفا ده آئينه

مدينه ده مدينه ، په کښي شته دے سکينه

دَ وفا دا دے دغه کُور

دَ حیــــــــــــا دے دغــــــــــــه کُـــــور
دَ رڼــــــــــــا دے دغــــــــــــه کُـــــور
دَ ګـلـونـو بــاغـیـچــه ، ګـلـدستـه ده حسینـه
مـدینـه ده مـدینـه ، پـه کـښـې شتـه دے سکـینـه
هـــم ئـــې ښـــکـــلـــے هـــر دریـــار
هـــم ئـــې ښـــکـــلـــے هـــر ګـــلـــزار
اے احـــــمـــــده ! هـــــر ګـــفتـــار
دا ده ښــکــلــے مــدیــنــه ، مـعـطّـره مـدیـنــه
مـدینـه ده مـدینـه ، پـه کـښـې شتـه دے سکـینـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مبــارك دے دَ نبــی ﷺ ښــائستــهٔ قدم دَ مـدینـې
خـورم قسـم چې ډیر دے ښـکلے پاك حرم دَ مدینې
ډیر دے ښـکلے ډیر دے ښـکلے په دُنیا کښې دغه در
ډیر دے ښـکلے ډیر دے ښـکلے په رڼا کښې دغه در
لــرے شـو ے دَ نـفــاق دے تـول تـورتـم دَ مـدینـے
خـورم قسـم چې ډیر دے ښـکلے پاك حرم دَ مدینې
مبــارك دے دغــــه دردا پــــه نبـی آخـرزمــان ﷺ
مبــارك دے دغـــه دردا دے دُنیــا کـښې عــالیشـان
هـریـو در دے عــالیشــان ښــهٔ محتـرم دَ مـدینـې
خـورم قسـم چې ډیر دے ښـکلے پاك حرم دَ مدینې

ښکلی ښکلی په کښې اُوسی تول اصحابؓ دَ محمد ﷺ
ښکلی ښکلی په کښې اُوسی تول احباب دَ محمد ﷺ
دَ عظمت اقرار دے کړے تول عجم دَ مدینې
خورم قسم چې ډیر دے ښکلے پاك حرم دَ مدینې
هریو درئې دَ دُنیا دَ در چمن دے عالیشان
احمد وائی وائی حقیقت دے دا بیان
ذکر کړے لوئې مقام هریو قلم دَ مدینې
خورم قسم چې ډیر دے ښکلے پاك حرم دَ مدینې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك چې وی عاشق دَ نبی ﷺ ښهٔ او خراب پیژنی
هغه په دنیا کښې هر یو کار دَ ثواب پیژنی
هغه په دُنیا کښې له بدعت نه تل نفرت کوی
هر ځائے هر محفل کښې هغه غنې ګلاب پیژنی
لرے دَ بدعت نه وی سنت سره کوی مینه
هر ځائے هر شیطان دَ پاره دلته جواب پیژنی
آل سره ئې مینه وی دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ دَ در
پیژنی ښهٔ پیژنی مقام دَ اصحابؓ پیژنی
هغه حدیث پیژنی ښهٔ مینه ورسره کوی
ډك دَ هر حکمت نه هغه ښکلے کتاب پیژنی
پیژنی هم پیژنی میزان هغه احمده ! نن

دا رنګ دَ محشر په میدان هغه حساب پیژنی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سپین مخ دَ مصطفیٰ ﷺ دے، رڼا دے نُور رڼا دے
قمر د دُوی په وجه، خندا دے په خندا دے

باعث دَ هر یو در دے، هم سیّدالبشر ﷺ دے
محبوب زما اوستا دے، حسین بدرالدجیٰ ﷺ دے
قمر د دُوی په وجه، خندا دے په خندا دے

امام دَ مُرسلانو، دُنیا کښې دَ نیکانو
قسم دے مقتدا دے، رڼا دَ هر صبا دے
قمر د دُوی په وجه، خندا دے په خندا دے

رحمت دَ کل عالم دے، رُتبه کښې مقدم دے
شفیع خیر الوریٰ ﷺ دے، صادقه په وینا دے
قمر د دُوی په وجه، خندا دے په خندا دے

سلطان دے دَ مخلوق، جانان دے دَ مخلوق
لقب ئې هم طٰهٰ دے، لقب ئې مصطفیٰ ﷺ دے
قمر د دُوی په وجه، خندا دے په خندا دے

احمد ئې ثناخوان دے، مدّاح ئې دَ جهان دے
اعلیٰ دے ډیر اعلیٰ دے، ممتاز په هر ادا دے
قمر د دُوی په وجه، خندا دے په خندا دے

★★★★★★★★

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُور کښې شـۀ غـوپـه دَ مـحـمـد خیر البشر ﷺ
ځـان بـانـدې ښـکـاره کـړه دَ رسـول ﷺ دَ دراثـر
ځـان بـانـدې ښـکـاره کـړه هـر ادا دَ مـحـمـد ﷺ
راشـه راشـه اُکـړه اقـتـدا دَ مـحـمـد ﷺ
واخـلـه ډيـوه واخـلـه نـورانـی دَ هـريـو در
ځـان بـانـدې ښـکـاره کـړه دَ رسـول ﷺ دَ دراثـر
ځـان بـانـدې ښـکاره کړه هريو نُور دَ محمد ﷺ
دغـه ده تـوښـه پـه کـائـنـات کښې دَ لـحـد
ځـان کـړه دَ دُنـيـا دَ پـاره نُـور دَ هـر سـحـر
ځـان بـانـدې ښـکـاره کـړه دَ رسـول ﷺ دَ دراثـر
ځـان پـه دغـې نُـور بـانـدې دُنيا کښې کړه اُوچت
ځـان پـه دغـې نُـور بـانـدې هرخوا کښې کړه اُوچت
ځـان نـه ډيـوه جـوړه کـړه دُنـيـا کښې لـکـه نـمـر
ځـان کـړه خـوشبـوداره پـه سـنـت دَ مـحـمـد ﷺ
راشـه واخـلـه مـيـنـه مـحـبـت دَ مـحـمـد ﷺ
هـريـوے ادا نـه دَ نـبـی ﷺ اُوسـه خـبـر
ځـان بـانـدې ښـکـاره کـړه دَ رسـول ﷺ دَ دراثـر
نُـور رنـا سـنـت سـره ښـائـسـتـۀ کـړه خپـل بـدن
وائـی احـمـد وائـی خپـل ښـائـسـتـه کړه ټول وطن

هر ځائے په دے مشك سره كړه دلته معطّر
ځان بانديې ښكاره كړه دَ رسول ﷺ دَ دراثر

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

نشته دے نشته په لتانه پيغمبر نبى بل
نشته دے نشته په لتانه يو رهبر نبى بل
په نُور كامل په هر صفت سره كامل نبى ئې
نشته دے نشته په لتانه يو افسر نبى بل
په اولين او آخرين كښې ستا جُدا مقام دے
داسے دُنيا كښې نشته نشته بختور نبى بل
دَ نبوت سلسله تا باندے رب بنده كړله
پيدا به نشى په لتانه په يو در نبى بل
په كائنات كښې ئې محبوب دَ محبوبانو ټولو
داسے به نۀ وى په دُنيا كښې يو رهبر نبى بل
دَ اوّلين او آخرين دَ سر ئې تاج رسوله! ﷺ
نشته دے نشته ستا پشان عالى بشر نبى بل
احمد ليكلے ئې خلاصه دَ كائنات دَ خلقو
نشته دے نشته كائنات كښې نُور قمر نبى بل

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

اے پاك رسوله! ﷺ ستا نه وروستو پيغمبر نشته دے
دا عقيده لرم چې ستا په شان بشر نشته دے

تـهٔ اوّلیـن ئـې اٰخـریـن ئې پـه دُنیا کښې نبی ﷺ
دَ هـر بهتـر نـه بهتـریـن ئې په دُنیا کښې نبی ﷺ
زهٔ عـقیـده لـرم چـې ستـا پشـان بهتـر نشتـه دے
دا عـقیـده لـرم چې ستـا پـه شـان بشـر نشتـه دے
ربَ پـه قراٰن کښې ستا تعریف کوی ختم الرسله ! ﷺ
هـم لامـکان کښې ستا تعریف کوی ختم الرُّسله ! ﷺ
وائـمـه څـکـه ستـا پـه شـان ښـهٔ بختور نشتـه دے
دا عـقیـده لـرم چې ستـا پـه شـان بشـر نشتـه دے
ټـولـو نبیـانـو ستـا دَ لـوئـے مقام اقـرار کړے دے
ټـولـو ولیـانـو ستا دَ لـوئـے مقام اقـرار کړے دے
روښـانـه ستا په شان دُنیا کښې ښائسته نمر نشته دے
دا عـقیـده لـرم چې ستـا پـه شـان بشـر نشتـه دے
خپـلـو پـردو ستـا دَ مـقـام اقـرار پـخپـلـه کړے
دُوی هـر سـحـر سـره مـابـنـام اقرار پـخپـلـه کړے
ښائستهٔ دُنیا کښې ستاپه شان څوك په نظر نشته دے
دا عـقیـده لـرم چې ستـا پـه شـان بشـر نشتـه دے
ستـا لـوئـې مـقـام او مـرتبے نـه ټول جهان خبر دے
احـمـده ! واوره پـه دُنیا کښې ټول مـردان خبـر دے
نشتـه دے نشتـه ستـا پـه شان عـالی افسر نشتـه دے
دا عـقیـده لـرم چې ستـا پـه شـان بشـر نشتـه دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے هر امام نه دے امام ﷺ دَ مدینې
ښکلے دے حسین خیر الانام ﷺ دَ مدینې
ښکلے دے حسین هغۀ رهبر دَ رهبرانو
ښکلے دے حسین هغۀ رهبر دَ عالمانو
ښکلے هر کلام نه دے کلام دَ مدینې
ښکلے دے حسین خیر الانام ﷺ دَ مدینې
ښکلے دے حسین هغۀ خاتم دَ مُرسلانو ﷺ
ښکلے دے حسین هغه خاتم دے دَ نبیانو ﷺ
داسے وائی خلق خاص او عام دَ مدینې
ښکلے دے حسین خیر الانام ﷺ دَ مدینې
ښکلے دے حسین هغه امین دے دَ عرب
هم هغه صادق دے بهترین دے دَ عرب
ښکلے دے دَ پاك نبی ﷺ پیغام دَ مدینې
ښکلے دے حسین خیر الانام ﷺ دَ مدینې
ښکلے په دُنیا کښې دَ هر نُور نه هغه نُور دے
ښکلے په هر خوا کښې دَ هر نور نه هغه نُور دے
ښکلے دَ دُنیا دے نُور تمام دَ مدینې
ښکلے دے حسین خیر الانام ﷺ دَ مدینې
ښکلے دے هر قول دَ مصطفیٰ ﷺ خیر البشر ﷺ

وائـي احـمـد وائـي دلتـه دغـه مـختـصـر
ښـکـلـے شـريـعـت دے تـول اسـلام دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے حسـيـن خيـر الانـام ﷺ دَ مـديـنـې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښـکـلـے دے ښـائسـتـهٔ دے هـريـو در دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے زمـونـږه پيـغـمبـر ﷺ دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے ښـائسـتـهٔ دے ورتـه نـهٔ رسـي ګلونـه
ښـکـلـے دے ښـائسـتـهٔ دے ورتـه نـهٔ رسي لعلونـه
ښـکـلـے دَ هـرچـانـه دے دلبـر دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے زمـونـږه پيـغـمبـر ﷺ دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے ښـائسـتـهٔ دے په دُنيا کښې له هرچانه
ښـکـلـے دے حسيـن دے خورم قسم دے عاليشانه
ښـکـلـے دے هـرچـانـه لـوئے رهبر دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے زمـونـږه پيـغـمبـر ﷺ دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے ښـائسـتـهٔ په کائنات کښې له آفتاب نه
ښـکـلـے دے ښـائسـتـهٔ په کائنات کښې له مهتاب نه
ښـکـلـے دے دَ ښـکـلـو لـوئے افسـر دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے زمـونـږه پيـغـمبـر ﷺ دَ مـديـنـې
ښـکـلـے دے دَ سـتـورو نـه دُنيا کښې پـه آسـمان
ښـکـلـے دے احـمـده ! دَ دُنيـا پـه هـر بيـان

ښـکـلـے دے عـالـی نُـور دَ نـظـر دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے زمـونـږه پیـغـمبر ﷺ دَ مـدینـي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښـکـلـے پـه دُنیـا کښـې دے ګلـزار دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے دَ دوجهـان تـاجـدار ﷺ دَ مـدینـي
ښـکـلـے هـر صـفـت سـره دُنیـا کښـي پـه هـردر
ښـکـلـے دے ښـائسـتـۀ دے هـر بهـتـرنـه دے بهتـر
ښـکـلـے دے مـحبـوب دَربّ غـفـار دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے دَ دوجهـان تـاجـدار ﷺ دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے ښـائسـتـۀ دے داسـے وائـی عـالـمان
ښـکـلے دے ښـائسـتـۀ دے داسـے وائـی تـول جهـان
حُسـن دَ دُنیـا دے دَ هـردار دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے دَ دوجهـان تـاجـدار ﷺ دَ مـدینـي
ښـکـلـے هـر بشـر نـه دے دُنیـا کښـي پـه هـر در
ښـکـلـے هـر افسـر نـه دے دُنیـا کښـي پـه هـر در
هـر سـردار نـه ښـکـلـے دے سـردار دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے دَ دوجهـان تـاجـدار ﷺ دَ مـدینـي
ښـکـلـے دے ښـائسـتـۀ دے وائـی داسـے هـر انسـان
وائـی احـمـد وائـی پـه دُنیـا کښـي دَ مـردان
ښـکـلـے دے ښـائسـتـۀ خیـر الابـرار ﷺ دَ مدینـي

شکلے دے دَ دوجهان تاجدار ﷺ دَ مدینې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نیك انسان روان وی مصطفیٰ ﷺ پسے
نهٔ وهی دے منډے په دُنیا پسے
هر یوه خبره دَ نبی ﷺ چې ده
ګرځی نیك انسان دغې رښا پسے
نور پسے دے منډے دَ دُنیا وهی
نهٔ وهی دے منډے په جفا پسے
کار دَ سعادت په دې جهان کوی
نیك انسان روان وی حق وینا پسے
کار دَ هر فلاح په دې دُنیا کوی
ښهٔ انسان روان وی په رښتیا پسے
هر یو حیادار دَ دهٔ ملګرے وی
ګرځی نه دُنیا کښې بې حیا پسے
کار به هر یو دلته دَ سنت کوی
نهٔ وی دے منډے په ګډا پسے
لار به دَ سنت بدله نه کړے دے
وروستو به روان وی په طٰهٰ ﷺ پسے
وُلیدل احمد علی نیکان خلق
منډے وهی ټول په مجتبیٰ ﷺ پسے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

مونږ به ناپوهه انسانان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

مونږ به ناپوهه په هر در وو دلته

مونږ دَ بدتر نه به بدتر وو دلته

مونږه به ډك دَ هر ضرر وو دلته

مونږ به ازغی دَ ګلستان وو رسول ﷺ کۀ نه وے

مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

مونږ به تیرو کښې دَ جهان اُوسیدو

مونږ به تیرو کښې په هران اُوسیدو

مونږ به تول لرے دَ رحمٰن اُوسیدو

مونږ به تیرو کښې تول روان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

مونږ به محروم دَ سعادت نه وو تول

مونږ به محروم دَ هدایت نه وو تول

مونږ به محروم دَ شریعت نه وو تول

مونږ به ملګری دَ شیطان وو رسول ﷺ کۀ وے

مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

مونږ به دَ خیر نه وومحروم دَ جهان

مونږ به محروم وے ددې نُور دَ قرآن

ګمراه به دلته کيني وے هر يو انسان
مونږ به تيرو کيني دَ جهان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے
مونږ به ذليله در په در باندي وو
مونږ به اخته په هريو شر باندي وو
ذليل به ټول دَ لر او بر باندي وو
مونږه به خوار په هر مکان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے
مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے
زمونږ ملګرے به ابليس لعين وو
زمونږ ملګرے به خسيس لعين وو
ګمراه غريب به هر رئيس لعين وو
مونږ به په جمع شيطانان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے
مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے
مونږ به وولرے نيغے لار نه تل
مونږ به وولرے هر ګلزار نه تل
احمده! نور نه دَ انوار نه تل
مونږ به مشرکه کافران وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے
مونږ به دَجهل غلامان وو رسول ﷺ کۀ نۀ وے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محبوبه! ﷺ عاشقان بنکلی ستا در ته در چليږی
درځی دوی نۀ صبريږی، په جمع عاشقان

عجیب ښکلے قانون دلته دَ مینے محبت دے
هر سرپه دغی مینے سره دلته کښې اُوچت دے
دینداره خلق دلته په دے مینهٔ ښهٔ پوهیږی
درځی دوی نهٔ صبریږی، په جمع عاشقان
عجیب ښکلے دستور دے دَ دُنیا دَ محبت
دَ سر سیورے دُنیا کښې دے دُنیا کښې دے عزت
قسم دے عالمان ددغې مینے نهٔ زاریږی
درځی دوی نهٔ صبریږی، په جمع عاشقان
دا مینه دَ بدن دَ پاره روح دے دَ جهان
دا مینه دَ هرتن دَ پاره روح دے دَ جهان
هوښیار سړے په مینه باندې دلته خوشحالیږی
درځی دوی نهٔ صبریږی، په جمع عاشقان
دا مینه ده ښُکلا دَ هر بدن او دَ وطن
دا مینه ده ښُکلا په دې دُنیا کښې دَ چمن
احمد علی! په مینه باندے خلق ښائستهٔ کیږی
درځی دوی نهٔ صبریږی، په جمع عاشقان

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ دُنیا دَ در محبوب او محترم دے
محمد رسول الله ﷺ دَ کُل عالم دے
رسالت ئې دَ دُنیا دے هر بشر له

هدايت ئي دَ دُنيا دے هر بشر له
معززه په عرب او په عجم دے
محمد رسول الله ﷺ دَ کُل عالم دے
شريعت ئي تول جهان له رڼا ده
نبوت ئي تول جهان له رڼا ده
قدرمنده دُنيا په هر قدم دے
محمد رسول الله ﷺ دَ کُل عالم دے
هر سنت ئي نُور رڼا دَ هريو دره
صداقت ئي نُور رڼا دَ هريو دره
دَ هر درد علاج دُنيا کښي دَ هر غم دے
محمد رسول الله ﷺ دَ کُل عالم دے
هر ادا ئي مثالى ددي جهان ده
هر ادا ئي مثالى دَ پاس اسمان ده
مينه مينه په دُنيا کښي مجسم دے
محمد رسول الله ﷺ دَ کُل عالم دے
هريو قول ئي دَ دُنيا دَ در رڼا ده
هريو قول ئي دَ دُنيا دَ در ښُکلا ده
ذکر کړے تا الحمده! په قلم دے
محمد رسول الله ﷺ دَ کُل عالم دے

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محمد ﷺ زمونږ دَ ټولو مقتدا دے
دَ هر چا دَ زړۀ سکون دَ زړۀ دوا دے
کۀ غریب دے کۀ مالدار په دې جهان
کۀ بادشاه دے کۀ وزیر دَ یو مکان
په اعلاؤ کښې دَ ټولو نه اعلیٰ دے
محمد ﷺ زمونږ دَ ټولو مقتدا دے
کۀ عالم دے کۀ ولی ددې جهان دے
کۀ امام دے کۀ رهبر دَ یو مکان دے
هر بشر لره تسکین دلته هر خوا دے
محمد ﷺ زمونږ دَ ټولو مقتدا دے
کۀ شاګرد دے کۀ اُستاد ددې جهان
دَ احمد علی دے واورۀ دا بیان
دَ هر چا دَ سترګو تور په دې دُنیا دے
محمد ﷺ زمونږ دَ ټولو مقتدا دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محمد رسول الله ﷺ عالی په ذات دے
رهنما دَ ټول جهان دَ مخلوقات دے
په عرب او په عجم کښې بل څوک نشته
خورم قسم په ټول عالم کښې بل څوک نشته

بهترين زمونږ نبي ﷺ په تول حالات دے
محمد رسول الله ﷺ عالي په ذات دے

دَ دُنيا دَ در شاهان ئي غلامان دي
وزيران ئي دَ جهان تول خادمان دي

مثالي په هر صفت په عبادات دے
محمد رسول الله ﷺ عالي په ذات دے

تول اصحاب ؓ ئي دَ آسمان رڼا دي ستوري
تول احباب ؓ ئي دَ آسمان رڼا دي ستوري

خورم قسم چي بهترين په معاملات دے
محمد رسول الله ﷺ عالي په ذات دے

هر يو قول كښي ئي رڼا ده دَ سحر
هر يو قول كښي ئي ښُكلا ده دَ سحر

اے احمده! ښۀ عالي په تول صفات دے
محمد رسول الله ﷺ عالي په ذات دے

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

په هر چا دَ پاك رسول ﷺ ادب لازم دے
دا ادب په تول عجم عرب لازم دے

كاميابي ده دَ رسول ﷺ په محبت كښي
مسلمان له دغه درس مكتب لازم دے

عزت راشه دَ نبي ﷺ په در كښي پروت دے

مسلمان له دغه در مشرب لازم دے
سنت راشه دَ نبی ﷺ بشۀ طریقه ده
په بدعت سره هر ځائے غضب لازم دے
دَ انوارو لاره راشه دَ نبی ﷺ ده
دا ده ښۀ هم دلته دا مطلب لازم دے
بهتر دین دَ محمد رسول الله ﷺ دے
هر بهتر له بهتر لقب لازم دے
اے احمده! دَ نبی ﷺ مذهب اسلام دے
کامیابے له دغه دین مذهب لازم دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لازم په مسلمان دے دَ رسول الله ﷺ ادب
راغلے په جهان دے دَ رسول الله ﷺ ادب
امام دے کۀ ولی دے کۀ عالم دے د دُنیا
راغلے په انسان دے دَ رسول الله ﷺ ادب
استاد دے کۀ شاګرد دے دَ دُنیا دَ هر مکتب
لازم په هر مکان دے دَ رسول الله ﷺ ادب
وزیر کۀ بادشاه دے مرتبه کښي ډیر اوچت
لازم په هر سلطان دے دَ رسول الله ﷺ ادب
غریب دے کۀ مالدار دے دا دے فرض په هر چا
بُنیاد دَ هر ایمان دے دَ رسول الله ﷺ ادب

بـډهـا کـهٔ جهـان دے پـه هغـه بـاندې لازم دے
راغـلـے پـــه هــرځـوان دے دَرسـول اللّٰـــه ﷺ ادب
احـمـدعـلـی ! دُنیـا کښې دا لازم دے پـــه هـــرچـا
لازم پــــه ټـول مـــردان دے دَرســول الـلّٰــه ﷺ ادب

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ټول کـائـنـات کښې ثـانـی نهٔ لـری زمونـړه نبی ﷺ
په ټول صفات کښې ثـانـی نهٔ لری زمونړه نبی ﷺ
ښـکـلـے ښـائستــهٔ ئې دَ دُنیـا هرعبادت ښکلے دے
بــــره اُسـمــــان تـــــه لامـکــــان تــــه دَ دُنیـا تـلـے دے
لـوئـے مـقـامـات کښې ثـانـی نهٔ لری زمونړه نبی ﷺ
ټول کـائـنـات کښې ثـانـی نهٔ لری زمونـړه نبی ﷺ
ښـکـلـی اخلاق ئې پـه دُنیـا لـعـل وګـوهـريـاديـږی
ښــکــلـی اخـلاق ئې دَدُنیـا مشك وعـنبـريـاديـږی
هـم مـعـامـلات کښې ثـانـی نـهٔ لری زمونړه نبی ﷺ
ټول کـائـنـات کښې ثـانـی نهٔ لری زمونـړه نبی ﷺ
ټـول پـــه سیـــرت ســره ښـائستــه دے دَدُنیـا دَدر
ټـول پـــه صـــورت سـره ښائستــهٔ دے نـورانـی بشـر
پـه عبـادات کښې ثـانـی نـهٔ لـری زمونـړه نبـی ﷺ
ټول کـائـنـات کښې ثـانـی نهٔ لری زمونـړه نبی ﷺ
هـــره ادا ئـــې ده ښـــائستـــهٔ داسـے احـمـد لیـکـلـے

رنړائي دلته کائنات کښې دَ لحد ليکلے
په کمالات کښې ثانی نۀ لری زمونږه نبی ﷺ
ټول کائنات کښې ثانی نۀ لری زمونږه نبی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنيا کښې دلته چا چې مصطفیٰ ﷺ ليدلے دے
هغهٔ دَ مُرسلانو مقتدا ﷺ ليدلے دے
امام او مقتدا دَ هر نبی ﷺ ددې جهان دے
امام او مقتدا دَ هر ولی ددې جهان دے
دُنيا کښې چې يو کس خيرالوریٰ ﷺ ليدلے دے
هغهٔ دَ مُرسلانو مقتدا ﷺ ليدلے دے
امام دَ هر امام دے دَ دُنيا ددغې در
امام دَ هر امام دے په هر خوا ددغې در
قسم دے چا چې دلته کښې طٰهٰ ﷺ ليدلے دے
هغهٔ دَ مُرسلانو مقتدا ﷺ ليدلے دے
خوشبو په دے دُنيا کښې دَ دُنيا دَ ګلستان دے
قسم دے پاس قمر غوندې ښائستهٔ په دې جهان دے
قسم دے چا چې دلته کښې بيا بيا ليدلے دے
هغهٔ دَ مُرسلانو مقتدا ليدلے دے
رحمت دَ کُل عالم دے محمد خيرالبشر ﷺ
علاج دَ هر يو غم دے محمد خيرالبشر ﷺ

قسم دے په سیرت ئې نُور صفا لیدلے دے
دُنیا کښې دلته چا چې مصطفیٰ ﷺ لیدلے دے
محبوب دَربّ اکبر دے هم محبوب دَ مخلوقات
احمد علی جامع هغه دے دلته دَ صفات
سبب دَ هر سکون دلته کښې ما لیدلے دے
دُنیا کښې دلته چا چې مصطفیٰ ﷺ لیدلے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په ګل کښې چې چا حُسن په دُنیا لیدلے دے
قسم دے دۀ دا حُسن دَ طٰهٰ ﷺ لیدلے دے
دُنیا کښې هریو حُسن ددې در نه تقسیم شوے
هرخوا کښې هریو حُسن ددې در نه تقسیم شوے
قسم دے چا چې حُسن په کُوم خوا لیدلے دے
قسم دے دۀ دا حُسن دَ طٰهٰ ﷺ لیدلے دے
دُنیا کښې هریو حُسن ، هریو نُور دَ هریو در
دُنیا کښې رڼا ګانے دَ قمر او ددې نمر
دا حُسن په دُنیا کښې چې نن چا لیدلے دے
قسم دے دۀ دا حُسن دَ طٰهٰ ﷺ لیدلے دے
دُنیا کښې ښکلے حُسن دَ دُنیا دَ هر سحر
دُنیا کښې ښکلے حُسن دَ دُنیا دَ هر بشر
ښائست چې دلته چا په یو ادا لیدلے دے

قسم دے دۀ دا حُسن دَ طٰـهٰ ﷺ ليدلے دے

ښائسته صورت چا دلته چې ليدلے دَ ګلونو

ښائسته صورت چا دلته چې ليدلے دَ باغونو

دا حُسن دلته هر ځائے چې ئې بيا ليدلے دے

قسم دے دۀ دا حُسن دَ طٰـهٰ ﷺ ليدلے دے

دا حُسن دَ دُنيا دے ټول دَ سيّد البشر ﷺ

احمد علي ! دُنيا دا په نبي ﷺ ده معطر

حُسن چې دلته چا دَ اولياء ليدلے دے

قسم دے دۀ دا حُسن دَ طٰـهٰ ﷺ ليدلے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په دُنيا کښې دَ جهان دے يو سپرلے

دا نبي آخر زمان ﷺ دے يو سپرلے

طريقه ئې دَ جهان ده هدايت

دَ مکان او لامکان دے يو سپرلے

دَ هر در دَ پاره نُور دَ شريعت دے

پيدا کړے رب رحمٰن دے يو سپرلے

دَ دُنيا دَ در ښکلا ده هر ساعت

بهترين دَ ګلستان دے يو سپرلے

هر طرف ته هم په دُوي سره خوشبو ده

اے احمده ! حق بيان دے يو سپرلے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محمد ﷺ هغه امام دَ مُرسلین ﷺ دے
په لقب باندې صادقه ﷺ او امین ﷺ دے
په ظاهره ئې ظهور شو مے آخر کښې
مرتبه او په مقام کښې اولین دے
مزمل ﷺ او مدثر ﷺ ئې القابات دی
په طٰهٰ ﷺ سره یاد شو مے په یٰسین ﷺ دے
دَرحمت سپورې دُنیا ته دے راغلے
په محبوب باندی یاد شوے دَ متین دے
دَ محشر په ورځ ملګرے دَ امت دے
په لقب باندې شفیع دَ مذنبین ﷺ دے
صفتونه ئې بیشمیره دَ جهان دی
اے احمده! هر صفت ئې بهترین دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په انبیاؤ کښې عالی صفت انسان دے نبی ﷺ
وایه دا څوک دے دا نبی آخرزمان ﷺ دے نبی ﷺ
داسے بشر په ټول جهان کښې چا لیدلے نهٔ دے
داسے بشر په یو مکان کښې چا لیدلے نهٔ دے
دَرحمت سپورې په دُنیا دَ هر مکان دے نبی ﷺ
وایه دا څوک دے دا نبی آخرزمان ﷺ دے نبی ﷺ

زۀ ئـي قــربــان شـم دَ وطـن او دَ حـرم نــه خـلـقــه!

زۀ ئـي قـربـان شـم پــه دُنيا دَ هر قـدم نـه خـلـقـه !

داسے دُنيا کښې خورم قسم ډير عالیشان دے نبی ﷺ

وايـه دا څوك دے دا نبی اٰخـرزمان ﷺ دے نبی ﷺ

راتـه وطـن ئـې پـه دُنيا کښې هر ساعـت يادېږي

راتـه مـدفـن ئـې پـه دُنيا کښې هرساعـت يادېږي

پـه هـر صـفـت سـره كـامله دا سلطان دے نبی ﷺ

وايـه دا څوك دے دا نبی اٰخـرزمان ﷺ دے نبی ﷺ

زۀ طـلـبـګــار ئـې دَ ديـدن يـم دا ارمــان لــرمـــه

وائــی احــمـد دغـــه ارمــان پــه دې جهـان لـرمـه

پـه كـائـنـات باندې دَ ربّ فـضل احسان دے نبی ﷺ

وايـه دا څوك دے دا نبی اٰخـرزمان ﷺ دے نبی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

وريـــږی پـــرے رحـــمـــت دَ رحـــمـتـونـو دے بـــاران

دا کُــور کـلـے دے ښـار دَ سـلـطـانـانـو دَ سـلـطان ﷺ

مـدفـن دَ مـحـمـد عــربــی ﷺ يــاد دے پــه دُنـيـا

چـمـن دَ مـحـمـد عــربــی ﷺ يــاد دے پــه دُنـيــا

دا ښــار دے پـــه دُنيــا کښــې دَ ګــلــونـو ګـلـستــان

دا کُــور کـلـے دے ښـار دَ سـلـطـانـانـو دَ سـلـطان ﷺ

هــر ګـل ددغـې در دے ښـۀ ښـائـسـتــۀ پـه هـرصفت

يـاد شـوے هـريـو ګـل ددغـي در دے پـه عـظـمـت
عـالـى پـه کـائـنـات کښـي ددے در دے هـر مـکـان
دا کُـور کـلـے دے ښار دَ سـلـطـانـانـو دَ سـلـطان ﷺ
خـوشـبـوئـي خـوره شـوے پـه دُنـيا کښـي ځـائـے پـه ځـائـے ده
خـوشـبـوئـي خـوره شـوے تـل وينا کښـي ځـائـے پـه ځـائـے ده
قـسـم دے مـعـزز دے پـه دُنـيـا کښـي عـالـيشـان
دا کُـور کـلـے دے ښار دَ سـلـطـانـانـو دَ سـلـطان ﷺ
دا کـور کـلـے هـم ښـار دے دَ صـديـق ؓ او دَ عـمـر ؓ
دا کـور کـلـے هـم ښـار دے دَ عـثـمـان ؓ او دَ حيـدر ؓ
احـمـد وائـى عـالـى ئـي پـه دُنـيا کښـي دے بيـان
دا کُـور کـلـے دے ښار دَ سـلـطـانـانـو دَ سـلـطان ﷺ

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

ګـلـونـه دا ښـائـسـتـۀ ښـائـسـتـۀ دَ چا کـلـى کښـي دى
ګـلـونـه دا زمـونـږ دَ مـصـطـفـىٰ ﷺ کـلـى کښـي دى
صـديـق ؓ دے کـۀ عـمـر ؓ دے دا ګـلـونـه دَ جـهـان دى
ښـائـسـتـۀ ښـائـسـتـۀ ګـلـونـه هم علىؓ او دا عثمانؓ دى
ګـلـونـه دغـه ښـکـلى دَ طـٰهٰ ﷺ کـلى کښـى دى
ګـلـونـه دا زمـونـږ دَ مـصـطـفـىٰ ﷺ کـلى کښـي دى
ګـلـونـه دَ ريـحـان دى هـر طـرف تـه پـه جـهـان
ګـلـونـه عـالـيشـان دى هـر طـرف تـه پـه جـهـان

ګلونه رنګ په رنګ دَ مجتبیٰ ﷺ کلی کښې دی
ګلونه دا زمونږ دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
ګلونه دلته کښې دی دَ ښُکلا دَ هریو در
ګلونه دلته کښې دی په هرخوا دَ هریو در
ګلونه دا زمونږ دَمقتدا کلی کښې دی
ګلونه دا زمونږ دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
دیدن له ئې راځی تول عاشقان ددې دُنیا
دیدن له ئې راځی دلته نیکان ددې دُنیا
ګلونه دا زمونږه دَ پیشوا کلی کښې دی
ګلونه دا زمونږ دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
ګلونه دا تازه دی دلته هرساعت
ګلونه دا تازه دی دلته دَ راحت
احمده! دا دَ سیَدالوریٰ ﷺ کلی کښې دی
ګلونه دا زمونږ دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مزے دَ دوجهان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے په هر مکان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دی او مزے دی د دُنیا په دغې در
ښائسته ٔ دا نظارے دی دَ دُنیا په دغې در
مزے دَ مسلمان دَمصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی

مزے دَ دوجهان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دَ هر بشر دی داسے وائی عالمان
مزے دَ مسافر دی داسے وائی عالمان
مزے دَ هر انسان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دَ دوجهان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دَ اولیاء دی په دې در دَ محمد ﷺ
مزے دَ علماء دے په دې در دَ محمد ﷺ
مزے په هویو اَن دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دَ دوجهان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دلته کښې هر ځائے دی دا وائی هر امام
احمد علی خبره شوه ستا دلته کښې تمام
مزے په هر میدان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی
مزے دَ دوجهان دَ مصطفیٰ ﷺ کلی کښې دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سفر دَ مدینې، سره دَ مور مزه کوی
بیا تلل په مدینه کښې په هرلور مزه کوی
سلام مزه کوی دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ
قیام مزه کوی دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ
بیا ذکر دَ نبی ﷺ دَ هر یو کور مزه کوی
بیا تلل په مدینه کښې په هرلور مزه کوی

چمن مزه کوی دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ
مدفن مزه کوی دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ
سفر کښې دَ خپل پلار سره خپل ورور مزه کوی
بیا تلل په مدینه کښې په هرلور مزه کوی
هر ګل مزه کوی دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ
محفل مزه کوی دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ
دَ خوب دَ پاره هلته کښې هر ګور مزه کوی
بیا تلل په مدینه کښې په هرلور مزه کوی
خوشبو مزه کوی دَ محمد خیر الانام ﷺ
احمد علی بیان کړلو هم دلته کښې تمام
پیاده مزه کوی په سورلے سُور مزه کوی
بیا تلل په مدینه کښې په هرلور مزه کوی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته دَ پاك نبی ﷺ یاران دی ټول
ګلونه دُوی دَ ګلستان دی ټول
صدیقؓ عمرؓ هریو مقام لری لوئے
عثمانؓ حیدرؓ هریو مقام لری لوئے
حضرت بلالؓ سره حسَانؓ دی ټول
ګلونه دُوی دَ ګلستان دی ټول
ښُکلا هرځائے کښې دَ هریو چمن ده

ښکلا هر ځائے کښې دَ هر يو وطن دے
تـول قـدر منـد دي عـاليشـان دي تـول
ګـلونـه دُوی دَ ګلستـان دي تـول
دَلوئے مقـام نـه ئې اللّٰـه خبـر دے
ښائست دُنيا کښې دَ هر يو سحر دے
پـه طريقـه نيغـه روان دي تـول
ګـلونـه دُوی دَ ګلستـان دي تـول
عـالی مقـام ئې پـه دُنيا يـاديږی
عـالی مقـام ئې پـه هرخوا يـاديږی
دَ مصطفیٰ ﷺ چې عـاشقـان دي تـول
ګـلونـه دُوی دَ ګلستـان دي تـول
هر يو صفت ئې د دُنيا ښکلے دے
احمده! دغـه پـه وينـا ښکلے دے
لعلونـه دُوی د دې جهـان دي تـول
ګـلونـه دُوی دَ ګلستـان دي تـول

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مونږ لـه دے ربّـه! چې نبی آخرزمان ﷺ راکړے
ستا دے احسان چې مونږ له تا دغه جانان ﷺ راکړے
مقام اُوچت لـری دُنيا کښې لـه هر چانه هغه
مقام اُوچت لـری دُنيا کښې انبياء نـه هغـه

ستا دے احسان چې دَ نبیانو دے سلطان ﷺ راکړے

مونږ له دے ربّه ! چې نبی اٰخرزمان ﷺ راکړے

مقام اُوچت لری دُنیا کښې کُل مخلوق نه هغه

مقام اُوچت لری هر خوا کښې کُل مخلوق نه هغه

ستا دے احسان چې پیغمبر ﷺ دے عالیشان راکړے

مونږ له دے ربّه ! چې نبی اٰخرزمان ﷺ راکړے

مقام اُوچت ئې له اٰسمانه په دُنیا یادیږی

مقام اُوچت ئې له هر چانه په دُنیا یادیږی

ستا دے احسان چې تا رهبر دَ ټول جهان راکړے

مونږ له دے ربّه ! چې نبی اٰخرزمان ﷺ راکړے

مقام اُوچت لری محبوب ځکه دَربّ هغه دے

مقام اُوچت لری محبوب دَ ټول عرب هغه دے

ستا دے احسان چې تا عجم له نُور عرفان راکړے

مونږ له دے ربّه ! چې نبی اٰخرزمان ﷺ راکړے

مقام اُوچت لری ګواه په دې احمد علی دے

مقام اُوچت لری ګواه په دې هر یو ولی دے

ستا دے احسان چې دَ هر زړهٔ دے اطمینان راکړے

مونږ له دے ربّه ! چې نبی اٰخرزمان ﷺ راکړے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ستا دے احسان ربّه ! چې مونږ له تا قراٰن راکړے

ورسره نُور دے دَ سنت دَ ټول جهان راکړے
ستا دے احسان چې تا انوار دَ محمد ﷺ راکړي
ستا دے احسان چې تاانوار دا دَ ابد راکړي
ستا دے احسان چې تا بُنیا دَ هرایمان راکړے
ستا دے احسان ربّه! چې مونږ له تا قرآن راکړے
ورسره نُور دے دَ سنت دَ ټول جهان راکړے
ستا دے احسان چې تا خوشبو دَ محمد ﷺ راکړے
ستا دے احسان چې تا خوشبو دَ هر لحد راکړے
ستا دے احسان چې تا واضحه حق بیان راکړے
ستا دے احسان ربّه! چې مونږ له تا قرآن راکړے
ورسره نُور دے دَ سنت دَ ټول جهان راکړے
ستا دے احسان چې تا رحمت دَ محمد ﷺ راکړے
ستا دے احسان چې تاشفقت دَ محمد ﷺ راکړے
ستا دے احسان چې تا دا درپه در اذان راکړے
ستا دے احسان ربّه! چې مونږ له تا قرآن راکړے
ورسره نُور دے دَ سنت دَ ټول جهان راکړے
ستا دے احسان چې تا احکام دَ شریعت راکړي
حکمونه ټول دے په دُنیا دَ محبت راکړي
ستا دے احسان چې دَ شیطان نه تا امان راکړے
ستا دے احسان ربّه! چې مونږ له تا قرآن راکړے

ورسره نُور دے دَ سنت دَ تول جهان راکړے
ستا دے احسان چې تا احمدله قلم ورکړے
ستا دے احسان چې تا نبی ښۀ محترم ورکړے
ستا دے احسان چې تا نبی ﷺ ښۀ عالیشان راکړے
ستا دے احسان ربّه ! چې مونږ له تا قرآن راکړے
ورسره نُور دے دَ سنت دَ تول جهان راکړے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پـه عاشقانو بـه اختر شی
چې مدینې تـه کـلـه ورشی
چې ئې نصیب دغـه وطن شی
چې ئې نصیب دغـه چمن شی
چې ئې نصیب دغـه سفر شی
پـه عاشقانو بـه اختر شی
چې ئې نصیب دغـه رڼا شی
چې ئې نصیب دغـه فضا شی
چې ئې نصیب دغـه سحر شی
پـه عاشقانو بـه اختر شی
چې ئې نصیب دغـه دربار شی
چې ئې نصیب دغـه بهار شی
پـه خوشحالو بانديې بـه سر شی

پـــه عــاشــقــانــو بــه اختــر شــی
چــي ئــي نــصيــب دغــه کــوځــے شــی
چــي ئــي نــصيــب دا نــظــارے شــی
تــول پــه وجــود بــه مــنــوَر شــی
پـــه عــاشــقــانــو بــه اختــر شــی
احــمــده ! بــيــا بــه پــه ســکــون شــی
بــائستــه بــه تــول ددۀ ژونــدون شــی
دَ هــر بهتــر نــه بــه بهتــر شــی
پـــه عــاشــقــانــو بــه اختــر شــی
چــي مــديــنــي تــه کــلــه ورشــی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مــلــگــری راتــه وائــی دَ طــه ﷺ کلــی تــه ځــو
ديــدن لــه پــه دُنيــا دَ مــصــطــفیٰ ﷺ کلــی تــه ځــو
وريــږی هــلتــه هــر ســاعــت رحــمــت پــه هــريــو در
هــر ځــائــے دَ مــديــنــي دے نُــورانــی تــول مــنــوَر
راځــی پــه جــمــع تــول چــي دَ رنــا کلــی تــه ځــو
ديــدن لــه پــه دُنيــا دَ مــصــطــفیٰ ﷺ کلــی تــه ځــو
بــائستــۀ ئــي هــريــو لار ده دَ انــوارو نــه ده ډکــه
بهتــر ئــي هــر کــوځــه ده دَ دُنيــا لــه هــر فــلکــه
راځــی چــي مــونــږ دَ سيّدالورئ ﷺ کلــی تــه ځــو

دیدن لـه پـه دُنیـا دَ مصطفیٰ ﷺ کلی تـه ځو
صـدیقؓ عـمـرؓ عثـمـانؓ دَ هغـه دردی ساکنان
بـلالؓ سـره حسَانؓ د دغـه دردی سـاکـنـان
راځـی چـې روانیـږو دَ وفـا کـلـی تـه ځـو
دیدن لـه پـه دُنیـا دَ مصطفیٰ ﷺ کلی تـه ځو
حسـنؓ سـره حسیـنؓ دَ هـغـه دردی سـاکـنـان
وریـږی مـدینـه کښې هـر سـاعـت دَ نُور باران
پـه جـمـع تـول مـحبوب لـه دَ دُنیـا کلی تـه ځو
دیدن لـه پـه دُنیـا دَ مصطفیٰ ﷺ کلی تـه ځو
مسـکن دَ هـر مسـکـن نـه ښـهٔ اعلیٰ دے پـه جهان
چـمـن دَ هـر چـمـن نـه ښـهٔ اعلیٰ دے پـه جهان
احـمـده! دَ دُنیـا شـمـس الضحیٰ کلی تـه ځو
دیدن لـه پـه دُنیـا دَ مصطفیٰ ﷺ کلی تـه ځو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راغـے مسـافـر دَ پاك رسول اللّٰـه ﷺ وطن نـه
خیـږی خـوشبـوئـی ئـې دَ قـدم نـه دَ بـدن نـه
راغـے مسـافـر دَ مـصـطـفیٰ خیر الوریٰ ﷺ دَ در
راغـے مسـافـر دَ مـجتبیٰ بـدر الدجیٰ ﷺ دَ در
راغـے مـدینې نـه دَ ښائسـتـهٔ ښـکـلی چمن نـه
خیـږی خـوشبـوئـی ئـې دَ قـدم نـه دَ بـدن نـه

ښـــهٔ دے ښــهٔ خبــر دَ مـديـنـي دَ انـواراتـو نـــه
ښـــهٔ دے ښــهٔ خبـر دَ مـديـنـي دَ ټول صـفـاتـو نـه

راغـــے مســـافـــر دَ انـــواراتـــو دَ ګــلشـــن نـــه
خيـــزي خـــوشبـــوئـــی ئـــي دَ قــدم نــــه دَ بــدن نـــه

راغـــے مســـافـــر دَ مـديـنـــي نـــه خـوشبـوداره ټول
راغـــے مســـافـــر دغـــه حصـي نـــه خـوشبـوداره ټول

مـونـږ تـــه خـوشبـوئـی ئـي محسوسيږی دَ چلن نـه
خيـــزي خـــوشبـــوئـــی ئـــي دَ قــدم نــــه دَ بــدن نـــه

راغـــے مســـافـــر وائـــی احـمـد پـــه هـر صفـت سـره
راغـــے مســـافـــر دَ مـديـنـــي نـــه دَ رحـمـت سـره

راغـــے مســـافـــر دَ پـــاك رسـول ﷺ دَ درلـمـن نـــه
خيـــزي خـــوشبـــوئـــی ئـــي دَ قــدم نــــه دَ بــدن نـــه

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

زهٔ غـــريـــب نـــهٔ يـمـــه ايـمـــان لـــرمـــه
دَ دوجهـــان ښـــکـلـے جـــانـــان ﷺ لـــرمـــه

ربَ نـــصيـــب کـــړے مـــي رڼــــا دَ جهـــان
ربَ نـــصيـــب کـــړے مـــي ښُــکـلا دَ جهـــان

رهبـــر دُنيـــا کښـــي زهٔ قـــرآن لـــرمـــه
دَ دوجهـــان ښـــکـلـے جـــانـــان ﷺ لـــرمـــه

ربَ نـــصيـــب کـــړے مـــي خيـــر البشـــر ﷺ

دَ هر يو در دَ پاره نُور قمر

رڼا ښُکلا دَ هر آسمان لرمه

دَ دوجهان ښکلے جانان ﷺ لرمه

ربَ نصيب کړے مې عزت دَ جهان

په دين اسلام باندې غيرت دَ جهان

دغه دولت په هر مکان لرمه

دَ دوجهان ښکلے جانان ﷺ لرمه

ربَ نصيب کړے مې حيا دَ نبی ﷺ

ربَ نصيب کړے مې ادا دَ نبی ﷺ

زهٔ د دُنيا دغه سامان لرمه

دَ دوجهان ښکلے جانان ﷺ لرمه

زما شافع شته په محشر کښې دَ ربَ

دولت لرمه په دُنيا دَ ادب

اخلاق ښائسته دَ دوجهان لرمه

دَ دوجهان ښکلے جانان ﷺ لرمه

بد نصيب نهٔ يم خوش نصيب زهٔ يمه

په هر سنت نُور ته قريب زهٔ يمه

سنت رڼا زهٔ حق بيان لرمه

دَ دوجهان ښکلے جانان ﷺ لرمه

★★★★★★★★

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

روان پـه لاره دَیسین ﷺ زۀ یمه

پـه مصطفیٰ ﷺ باندي مئین زۀ یمه

دَ مصطفیٰ ﷺ پـه هریو کار باندي زۀ

دَ مصطفیٰ ﷺ پـه هر ګلزار باندي زۀ

مئین مئین پـه دي حسین زۀ یمه

پـه مصطفیٰ ﷺ باندي مئین زۀ یمه

پـه هریو ګل دَ مصطفیٰ ﷺ باندي زۀ

پـه هر محفل دَ مصطفیٰ ﷺ باندي زۀ

مئین مئین زۀ پـه امین ﷺ زۀ یمه

پـه مصطفیٰ ﷺ باندي مئین زۀ یمه

پـه والضحیٰ ښکلی ښائسته صورت

دَ پاك رسول ﷺ پـه نوراني سیرت

مئین مئین ښـۀ پـه یقین زۀ یمه

پـه مصطفیٰ ﷺ باندي مئین زۀ یمه

زلفے واللیل ښکلے ښائسته دَ جهان

قسم دے ښکلی دی لـرم دا ایمان

مئین مئین پـه بهترین زۀ یمه

پـه مصطفیٰ ﷺ باندي مئین زۀ یمه

زۀ یم مئین دَ مصطفیٰ ﷺ پـه آل

مـــئـيـــن احـــمـــد ئـــي دے پـــه هـــر كـــمـــال
مـــئـيـــن بهتـــــر پـــــه اوّلـيـــن زهٔ يــمـــه
پـــه مـــصـــطـــفـــىٰ ﷺ بـــانـــدي مـــئـيـــن زهٔ يـــمـــه

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

راځـــے چـــې تـــول پـــه جـــمـــع دَ جانان كلـى تـــه ځـو
راځـــے چـــې دَ نبـــي اٰخـــرزمـــان ﷺ كلـــى تـــه ځـو
راوخـــلـــے اجـــازت دغـــې ســـفـــر دَ پـــاره تـــول
راوخـــلـــے اجـــازت ددغـــې در دَ پـــاره تـــول
دُنيـــا كښـــې دَ نبيـــانـــو دَ ســلـطـــان كلـــى تـــه ځـو
راځـــے چـــې دَ نبـــي اٰخـــرزمـــان ﷺ كلـــى تـــه ځـو
راځـــے چـــې شـــو تيـــار ددې ســـفـــر دَ پـــاره تـــول
راځـــے چـــې شـــو تيـــار ددغـــې در دَ پـــاره تـــول
دُنيـــا كښـــې مـــونـــږه دغـــه عـــالـشيـان كلـى تـــه ځـو
راځـــے چـــې دَ نبـــي اٰخـــرزمـــان ﷺ كلـــى تـــه ځـو
راځـــے چـــې شـــوروان ددغـــې در ديـــدن دَ پـــاره
راځـــے چـــې شـــو روان ددغـــې در چـــمـــن دَ پـــاره
راځـــے چـــې دَ مـــحبـوب دَ پـــاك سبـحـان كلـى تـه ځـو
راځـــے چـــې دَ نبـــي اٰخـــرزمـــان ﷺ كلـــى تـــه ځـو
راځـــے چـــې شـــو روان چـــې دلـتـــه نـــهٔ شـــو نـــورايسـار
راځـــے چـــې شـــو روان چـــې نُـــور اُنـــكـــړو انـتـظـــار

راځـــے چـــې دَګــلــونـو دَريـحــان کـلـی تــه ځـو
راځـــے چـــې دَ نبـــی اٰخـــرزمـان ﷺ کـلـی تــه ځـو
راځـــے چـــې شــو روان دَ صبـــر حــد شــولــو تــمــام
راځـــے چـــې شــو روان مــونــږه ديـدن لــه امـام ﷺ
احـــمـــد وائـــی راځـــے دَمـهـربـان کـلـی تــه ځـو
راځـــے چـــې دَ نبـــی اٰخـــرزمـان ﷺ کـلـی تــه ځـو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رڼـــا دَ مـــحـــمـــد ﷺ ســـره جهـــان وُځـلـيـدهٔ
دُنيـــا خـــولا دُنيـــا وه پـــاس اسـمـــان اُوځـلـيـدهٔ
رڼـــا شـــول دَ دُنيـــا دَدر دُنيـــا کښـــې مـحـلات
خـــوارهٔ شـــول هـــر طـــرف تـــه تـول انـوار او بـرکـات
دُنيـــا کښـــې هـــر طـــرف تـــه هـــر مـکـان وُځـليدهٔ
دُنيـــا خـــولا دُنيـــا وه پـــاس اسـمـــان اُوځـلـيـده
قـــدم چـــې کـــلـــه راغـــے پـــه دُنيـــا دَ مـحـمـد ﷺ
قـــدم چـــې کـــلـــه راغـــے دَ رڼـــا دَ مـــحـمــد ﷺ
ځـــنـــګـــل ســـره دُنيـــا کښـــې بيـــابـــان وُځـلـيـدهٔ
دُنيـــا خـــولا دُنيـــا وه پـــاس اسـمـــان اُوځـلـيـده
هـــر ځـــائـــے دَ هـــر مـکـان شو په نبی ﷺ ســره حسين
ښـــائسـتـــهٔ شـو هـــر طـــرف تـول نورانی شولو رنګين
پـــه حُســـن دَ نبـــی ﷺ هـــريـــو انســـان وُځـلـيـدهٔ

دُنیا خولا دُنیا وه پاس اسمان اُوځلیده

عجم کښي ښُکلا راغله په دُنیا کښي شو سحر

عرب کښي ښُکلا راغله هرطرف شو منوَر

احمده! بیا په نُور ئي لامکان وُځلیدۀ

دُنیا خولا دُنیا وه پاس اسمان اُوځلیده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك چي په دُنیا کښي مدیني ته ځی

خوند کړی چيِ دَ پاك رسول ﷺ کوڅي ته ځی

څۀ ښکلے منظر ددي سفر به وی

څۀ ښکلے منظر ددغي در به وی

څوك چي دَ رسول الله ﷺ روضي ته ځی

څۀ ښکلے مزه به دا سفر کوی

دلته دا سفر چي یو بشر کوی

څوك چي دَ ګلونو باغیچي ته ځی

خوند کړی چيِ دَ پاك رسول ﷺ کوڅي ته ځی

زړۀ بدن ددۀ به وی خوشحاله تول

ډك به دا سفروی دَ کماله تول

څوك چي دَ انوارو دے چیني ته ځی

خوند کړی چيِ دَ پاك رسول ﷺ کوڅي ته ځی

روح به ئي خوشحاله په دُنیا کښي وی

روح بــه ئـې خــوشــحــالــه پــه هرخوا کښې وی
اے احــمــده ! څــوك چـې دے حــصــې تــه ځــی
خـونـد کـړی چـې دَ پـاك رسـول ﷺ کوځې تـه ځی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ډیر دی ښـکـلی ښـکـلی خو خیر الانام ﷺ ته نهٔ رسی
دُوی کښې یـو بشـر هـم دَ رسـول ﷺ مقام تـه نهٔ رسی
هـریـو پیـغـمبر منمـه شان ښـه ډیر اوچت لـری
لـوئـے مـقـام هـر ځـائے کښې دَ انوارو دَ عـزت لـری
هـریـو پیـغـمبر منمـه ډیر لـوئـے فـضیلت لـری
دا مـې عـقـیـده ده چـې زمونږ امام ﷺ تـه نـهٔ رسـی
ډیر دی ښـکـلی ښـکـلی خو خیر الانام ﷺ ته نهٔ رسی
وګـوره تـورات چـې پـه خپـل ځـائے اُوچت مقام لری
وګـوره زبـور چـې پـه هـر ځـائے کښې احتـرام لـری
وګـوره انـجـیـل چـې تـل عـزت سـحـر ماښام لـری
دغـــه کـــلامــونــه اخـری کـلام تــه نــهٔ رسـی
ډیر دی ښـکـلی ښـکـلی خو خیر الانام ﷺ ته نهٔ رسی
حُسـن دَیـو سفؑ دے چې ئې ذکر په دُنیا کښې دے
حُسـن دَیوسفؑ دے چې ئې ذکر په هرخوا کښې دے
حُسـن دَیـوسفؑ دے چې ئې ذکر په وینا کښې دے
حُسـن کښې هیڅ کله بیا ماهِ تمام ﷺ ته نهٔ رسی

ډیر دی ښکلی ښکلی خو خیر الانام ﷺ ته نۀ رسی

ما احمد ئي ذکر دَ رڼا او حُسن کړے دے

ما ذکر ئي دلته دَ وفا او حُسن کړے دے

ما ذکر ئي دلته دَ حیا او حُسن کړے دے

یو دین دَ دُنیا هم دَ رسول ﷺ پیغام ته نۀ رسی

ډیر دی ښکلی ښکلی خو خیر الانام ﷺ ته نۀ رسی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ډیر دی ښکلی ښکلی خو زما جانان ﷺ ته نۀ رسی

ښکلی ټول ګلونه پاك نبی سلطان ﷺ ته نۀ رسی

ښکلی ښکلی دغه په دُنیا کښې چې ګلونه دی

ښکلی ښکلی دغه په دُنیا کښې چې لعلونه دی

دُوی دَ مدینې ښکلے ښائسته ذیشان ته نۀ رسی

ډیر دی ښکلی ښکلی خو زما جانان ﷺ ته نۀ رسی

ښکلی ښکلی شته دے په دُنیا کښې مخلوقاتو کښې

ښکلی ښکلی شته دے ښۀ ښائسته ټولو صفاتو کښې

ښکلی دغه ټول زمونږه مهربان ته نۀ رسی

ډیر دی ښکلی ښکلی خو زما جانان ﷺ ته نۀ رسی

ښکلی ښکلی شته دے بره بره اسمانونو کښې

ښکللی ښکلی شته دے دَ دُنیا په جهانونو کښې

دغه ټول خیزونه دَ نبی ﷺ مکان ته نۀ رسی

ډیر دی ښکلی ښکلی خو زما جانان ﷺ ته نۀ رسی

ښکلی ښکلی شته دے د دُنیا په انسانانو کښې

ښکلی ښکلی شته دے په نبیانو کښې ولیانو کښې

دغه تول احمده ! دَ محبوب سبحان ته نۀ رسی

★★★★★

تمت بحمد اللّٰه تعالیٰ وبتوفیقه

ربنا تقبل منا انك انت السمیع العلیم وتب علینا انك

انت التواب الرحیم وصلی اللّٰه تعالیٰ علیٰ خیر خلقه

محمد وآله واصحابه اجمعین ومن تبعهم باحسان

الیٰ یوم الدین.........................................

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحيم

# څلورمه برخه

## حمد باری تعالیٰ

مالك دَ کائنات دَ هر مکان ئي مولیٰ
خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولیٰ
مالك دَ آسمانونو ئي هر ځاته ده معلومه
مالك دَ جهانونو ئي هر ځاته ده معلومه
مالك دَ هر ځنګل دَبيابان ئي مولیٰ
خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولیٰ
مالك دَ لويو غرونو ئي هر څوك ترينه خبر دی
مالك دَ دریابونو ئي هر څوك ترينه خبر دی
مالك دَ هر يو ګل دَ ګلستان ئي مولیٰ
خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولیٰ
مالك تهٔ دَ کرسی ئي هم دَلوح او دَ قلم
مالك ئي دَ عرب سره دُنیا کښي دَ عجم
مالك دَ هر کافر او مسلمان ئي مولیٰ
خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولیٰ
مالك دَ هر بيان ئي دَ دُنیا دَ هر بشر
مالك ئي په دُنیا کښي ددُنیا ددغي نمر

مالك دَ هر غلام او دَ سلطان ئي مولىٰ

خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولىٰ

مالك دَموسمونو ئي دُنيا كښي دَ جهان

مالك دَ بارانونو ئي دُنيا كښي دَ جهان

مالك دَ هر كافر او مسلمان ئي مولىٰ

خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولىٰ

مالك هم دَ ګرمي ئي ددُنيا ددغي در

مالك هم دَ يخني ئي دَدُنيا دَ دغي در

مالك هم سپرلي او دخزان ئي مولىٰ

خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولىٰ

مالك تۀ دَ احمد ئي په دُنيا كښي په هردر

مالك تۀ دَماښام ئي هم مالك ئي دَ سحر

مالك دَ هر صفت دَ هر بيان ئي مولىٰ

خالق پروردیګار دَ ټول جهان ئی مولىٰ

## حمد باري تعالىٰ

كريم ئي تۀ رحيم ئي تۀ رحمان ئي مولىٰ

په هر چا په هر ځائے كښي مهربان ئي مولىٰ

نبيان دے ټول محتاج دي په دُنيا كښي په هردر

وليان دے ټول محتاج دي په دُنيا كښي په هردر

هادي دَ كائنات دَ هر انسان ئي مولىٰ

په هر چا په هرځائے کښې مهربان ئې مولىٰ

وزير دے کۀ بادشاه دے ستا محتاج دے په هر در

صالح دے کۀ گمراه دے ستا محتاج دے په هر در

عظيم په هر صفت بېۀ عاليشان ئې مولىٰ

په هر چا په هرځائے کښې مهربان ئې مولىٰ

خالق دَ ټول جهان ئې دې زمکے اوأسمان

رازق دَ ټول جهان ئې په دُنيا دَ هر حيوان

موصوف په هر صفت ددې جهان ئې مولىٰ

په هر چا په هرځائے کښې مهربان ئې مولىٰ

ذَرَه ذَرَه محتاج ده په دُنيا کښې ستا دَ در

احمدعلى هم غواړي ستا نه دلته هر سحر

اگاه دَ هر بشر دَ هر مکان ئې مولىٰ

په هر چا په هرځائے کښې مهربان ئې مولىٰ

## حمد باري تعالىٰ

خالق دَ کائنات دَ هر اسمان دے اللّٰه

مالك دَ مخلوقاتو دَ جهان دے اللّٰه

لرم دا عقيده چې شريك نه لرى په ذات کښې

لرم دا عقيده چې شريك نه لرى صفات کښې

رحيم سره کريم دے هم رحمٰن دے اللّٰه

مالك دَ مخلوقاتو دَ جهان دے اللّٰه

خبــــر دے دَ هــــر چـــانـــــه دا الــــرم زهٔ عــقـيــده

عــــالـــى دے عـــاليشـــانـــه دا الـــرم زهٔ عـقـيـده

مـعـمـــار دَ هـــريــو څيـــز دَ هـر مـكـان دے اللّــه

مـــالك دَ مـــخـــلــوقـــاتــو دَ جهـــان دے الـلّـــه

هـــر څيـــز تـــــه ئـي نـظــر دے ددُنيـــا ددغـــى در

ښـــكـــاره دى ورتــــه هـــر څـــهٔ ددُنيـــا دَ بـحـــرويـــر

مـــالك دَ هـــر مے دَ کټــے دَ تـــاوان دے الـلّــــه

مـــالك دَ مـــخـــلــوقـــاتــو دَ جهـــان دے الـلّـــه

رازق دَ مـخـلـوقـــاتــو پــــه دُنيـــا كنبـــي پـــه هـــردر

مـــالك دَ تـولـــو ستـــوررو دے مـــالك دے دَ قـمـــر

مـــالك دَ هـــريـــو غـــر دَ هـــر ميدان دے الـلّـــه

مـــالك دَ مـــخـــلــوقـــاتــو دَ جهـــان دے الـلّـــه

مـــالك دَ ونـــو بـــوټـــو دَ دُنيـــا دَ هـــر چـمـــن

مـــالك دَ مـــوســمـــونــو پــــه دُنيـــا دَ هـــروطـن

مـــالك دَ آبـــادي او بيـــابـــان دے الـلّـــــه

مـــالك دَ مـــخـــلــوقـــاتــو دَ جهـــان دے الـلّـــه

مـــالك زمـــا او ستـــا دے احــمـد وائـــى پـــه هـــردر

هــرچــا نـــه پـــه دُنيا كنبـي هـغـه ذات دے ښـهٔ خبر

مـــالك زمـــا دُنيـــا كنبـــي دَ بيـــان دے الـلّـــه

مـــالك دَ مـــخـــلــوقـــاتــو دَ جهـــان دے الـلّـــه

# حمد باري تعالیٰ

اے مولیٰ په ټول جهان کښې ستا دے ذکر
په مکان او لامکان کښې ستا دے ذکر

دَ دُنیا په دے هوا کښې بره بره
لاندې باندې هر اسمان کښې ستا دے ذکر

په ښکاره سره هم دغه شان په پټه
هر ځنګل او بیابان کښې ستا دے ذکر

هر ذره ذره دُنیا کښې ستا کړی ذکر
هر یو غر په هر میدان کښې ستا دے ذکر

دَ یخنے سره ګرمې کښې دغه کیږی
په سپرلی او په خزان کښې ستا دے ذکر

یو ځائے نشته چې خالي وی ستا دَ ذکره
دَ دُنیا په هر اذان کښې ستا دے ذکر

هر نبی ولی په هر ځائے کښی یاد کړے
دَ دُوی هر ځائے په اعلان کښې ستا دے ذکر

علماء په هر محفل کښې یادوی تا
خوشحالے کښې په خفګان کښې ستا دے ذکر

مسافر دے په سفر کښې یادوی تل
په هر ګران او په اسان کښې ستا دے ذکر

په تورات زبور انجیل کښې ستا دے ذکر

آخـــری کتـــاب قـــرآن کښـــې ستـــا دے ذکـــر
دا جهـــان ټـــول پـــه ذکـــر مـــاړهٔ نـــه شـــول
دَ احـــمـــد عـــلـــی بیـــان کښـــې ستـــا دے ذکـــر

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هـــــر یـــــو قـــــول دَ مـــــحـــــمـــــد ﷺ
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر لـــــحـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر بشـــــر
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر ســـــحـــــر
نُـــــور دے نُـــــور دا دَ ابـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر لـــــحـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر وطـــــن
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر کـــــفـــــن
نُـــــور دے نُـــــور دَ نیك او بـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر لـــــحـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر مـــــکـــــان
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر آســـــمـــــان
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر ولـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر لـــــحـــــد
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــرې لار
نُـــــور دے نُـــــور دَ هـــــر ګـــــفـــــتـــــار

دا عـــــــلاج دے هـــــــم مـــــــدد
نُـــــوردے نُـــــوردَ هـــــــرلـــــحـــــد
اے احـــــمـــــده ! دا دے نُـــــور
دَ هـــــــرزړۀ دے دا سُـــــــرور
دا ښُـــــکـــــلا ده دَ مـــــرقـــــد
نُـــــوردے نُـــــوردَ هـــــــرلـــــحـــــد

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

کـــۀ تـــۀ لـري شـوے دَ نُـور سـنـت دَ بـاب نـه
ځـان مـحـروم بـه کـړے دَلـوئـي اجـروثـواب نـه
دَاخـــردَ لـوئـــي مـقـــام نـــه بـــه شـي لـرے
لـــرے شـــي بـــه دَدُنيـــا دَ ښــۀ احبــاب نـــه
کـــۀ تـــۀ لـري شـوے د ديـن دَ مـحـمـد ﷺ نـه
بـــچ بـــه نشـــے پـــه دُنيـــا کښـــي دَ خـــراب نـــه
رنـــا ګـــانـــي دَ دُنيـــا درلـــه بيـــا نشتـــه
کـۀ تـۀ لـري شـوے دَ پـاك نبـي ﷺ اصـحـابؓ نـه
پـــه بـدعـــت کښـــي مبتـلا کـۀ پـه جهـان شـوے
بـــچ بـــه نشـــے پـــه آخـــر کښـــي دَ عـذاب نـــه
نـــاکـــامـــي دَ دوجهـــان ده پـــه دُنيـــا کښـــي
کـــۀ تـــۀ لـري شـوے دَ پـاك اللّـه کتـاب نـــه
راشـــه راشـــه هـــرسـنـــت لـــه اے احـمـده !

دَ نجات دے دا سبب یو دَ اسباب نه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لوئي مقام دَ محمد ﷺ دے دَ خبرو
قیمتی دی دا خبرے له سروزرو
دا ګلونه دَ جهان ګنهٔ دُنیا کښې
دا دی غوره دَ دُنیا دَ ملغلرو
خوشحالی په دے خبرو کښې ده پټه
دا علاج دے دَ دُنیا دَ مرورو
اقتدا دې خبرو کړه احمده!
په قسمت کښې داوی تل دَ بختورو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لوئي مقام دے ستا دَ زلفو
احترام دے ستا دَ زلفو
دا ښکلا دَ ټول جهان ده
حُسن تمام دے ستا دَ زلفو
دا بیان دَ ټول جهان دے
خاص وعام دے ستا دَ زلفو
تذکره ده هرطرف ته
ګام په ګام دے ستا دَ زلفو
دَ هرچا ښکلا په دے ده

نُور تمام دے ستا دَ زلفو
اے احمده! ذکر ښۀ دے
ښۀ کلام دے ستا دَ زلفو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ثناخوان دَ پاك رسول ﷺ دَ هر یو دریم
ثناخوان دَ محمد خیر البشر ﷺ یم
ثناخوان زۀ دَ ټول آل دَ محمد ﷺ یم
په دُنیا کښي په هر حال دَ محمد ﷺ یم
ثناخوان ئي صدیقؓ او دَ عمرؓ یم
ثناخوان دَ محمد خیر البشر ﷺ یم
ثناخوان زۀ دَ احباب دَ محمد ﷺ یم
مدح خوان زۀ دَ اصحابؓ دَ محمد ﷺ یم
مدح خوان زۀ دَ عثمانؓ او دَ حیدرؓ یم
ثناخوان دَ محمد خیر البشر ﷺ یم
ثنا خوان یم دَ حُسینؓ او دَ حسنؓ
مدح خوان یم په دُنیا ئي دَ وطن
ثناخوان ئي په دُنیا په لر او بر یم
ثناخوان دَ محمد خیر البشر ﷺ یم
ثناخوان ئي زۀ احمد دَ ښکلی کُور یم
ثناخوان ئي دَ دُنیا زۀ په هر لُوریم

مدح خوان ددغي هر يو سحريم
ثناخوان دَ محمد خير البشر ﷺ يم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په سنت باندې ښائسته شۀ مبارك شۀ
دَ تيرورنا ډيوه شۀ مبارك شۀ
دَ ايمان او اتحاد په غټ قوَت
دَ سنت په نُور بنياد په غټ قوَت
يوه جوړه نمونه شۀ مبارك شه
دَ تيرورنا ډيوه شۀ مبارك شۀ
په سيرت باندې روان دَ محمد ﷺ شۀ
شريعت باندې روان دَ محمد ﷺ شۀ
بهترين په هر حصه شۀ مبارك شۀ
دَ تيرورنا ډيوه شۀ مبارك شۀ
بهترين دَ پاك نبي ﷺ په صداقت شۀ
بهترين دَ پاك نبي ﷺ په نصيحت شۀ
دَ ګلونو ګلدسته شۀ مبارك شۀ
دَ تيرورنا ډيوه شۀ مبارك شۀ
واخله واخله طريقه دَ محمد ﷺ
داسے وائي په دُنيا کښې دا احمد
ښائسته ښکلے ائينه شۀ مبارك شۀ

دَ تیرور نا ړیوه شۀ مبارك شۀ

## نعتِ مصطفٰی ﷺ

کۀ په عقل باندې هر سړے لقمان شي
بیا را جمع هریو شکلے حق بیان شي
هر قول نه ګل شي جوړ دې جهان
خوشبو داره بیا هر ګل دې جهان شي
دَ دُنیا دَ در لعلونه شي تول جمع
دا لعلونه دَ دُنیا دَ بدخشان شي
هر موسم نه سپرلے جوړ شي دَ جهان
دَ دُنیا دَ در نه ختم دا خزان شي
دا اوصاف تول یو صفت دَ محمد ﷺ دے
کۀ صفات ورسره جمع دَ اسمان شي

## نعتِ مصطفٰی ﷺ

راشۀ اُوکړه دَ نبي ﷺ سره وفا
اُوکړه اُوکړه هاشمي ﷺ سره وفا
جوړ چې نشے بې وفا په یو مقام
اُوکړه اُوکړه مدني سره وفا
په وفا باندې جنت دَ محمد ﷺ شته
اُوکړه هریو صحابيؓ سره وفا
دا انوار تول په جهان دَ محمد ﷺ دي

اُوکـــــړه اُوکــــړه هـــــر ولــــی ســـــره وفـــــا
پـــه وفـــا کښـــي دَ نبـــی ﷺ رضـــا پـــرتـــه ده
اُکـــــړه هـــــرښـــــۀ اُمتـــــی ســـــره وفـــــا
لـــــړمے اُوســـــه اے احـــمـــده ! دَ جـــفـــا نـــه
اُوکـــــړه اُوکـــــړه دَ مـــکـــــی ﷺ ســـــره وفـــــا

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

یـــار مـــي یـــار دي دُنیـــا دے هـــغـــه کـــس
چـــي تـــابـع دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ دے هغـه کـس
چـــي تـــابـــع دَ مـــحـــمـــد خیـــر البشـــر ﷺ وی
ســـردارنـــو کښـــي ســـردار دے هـــغـــه کـــس
چـــي روان پـــه طـــریـــقـــه دَمـــحـــمـــد ﷺ وی
بهتـــریـــن پـــه هـــره لار دے هـــغـــه کـــس
چـــي رہنـــاوی دَنبـــی ﷺ پـــه نُـــور ســـنـــت
دَ دُنیـــا دَ در هـــوښیـــار دے هـــغـــه کـــس
مبتـــلا چـــي پـــه بـــدعـــت او شـــرك کښـــي نـــۀ وی
داســـے وائـــي تـــول بیـــمـــار دے هـــغـــه کـــس
مبتـــلا چـــي پـــه ګـــنـــاه کښـــي دَ جهـــان وی
زهیـــریـــلـــه دَ در ښـــامـــار دے هـــغـــه کـــس
چـــي پـــه زړۀ کښـــي ئـــي دَ پـــاك نبـــی ﷺ وی مینـــه
اے احـــمـــده ! تـــل ســـردار دے هـــغـــه کـــس

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زار دَ هر سنت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ شریعت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ هر یو امر دَ نبی ﷺ نه شم

زار زهٔ دَ مکی او مدنی نه شم

زار دَ هر صفت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ هر سنت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ هر ادا دَ مصطفیٰ ﷺ نه زهٔ

زار دَ نُور رڼا دَ مصطفیٰ ﷺ نه زهٔ

زار دَ هدایت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ هر سنت دَ محمد ﷺ نه شم

زار ئي په دُنیا کښي زهٔ دَ آل نه شم

زار ئي په دُنیا کښي دَ جمال نه شم

زار دَ هر نسبت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ هر سنت دَ محمد ﷺ نه شم

زار ئي دَ اصحابوؓ دَ دُنیا نه شم

زار ئي دَ دُنیا دَ هر وفا نه شم

زار دَ صداقت دَ محمد ﷺ نه شم

زار دَ هر سنت دَ محمد ﷺ نه شم

زار ئي دَ چمن نه زهٔ احمد شمه

زار ئــــي دَوطـــن نــــه زۀ احــمــد شـمــه
زار دَ عبـــــادت دَ مــحــمــد ﷺ نـــــه شـم
زار دَ هــــر سـنـــت دَ مــحــمــد ﷺ نـــه شـم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زار دَ مــــديـــنـــې مــنـــورې نــــه شـم
زار دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ بـشـکـلـې روضـې نــه شـم
زار دَ دغـــــې در دَ هــــريــو ګـــل نــــه شـم
زار دَ دغـــــی در دَ هــــر مــحــفــل نــــه شـم
زار دې دُنيــــا دَ بـــــاغـيـــچـــې نــــه شـم
زار دَ مــــديـــنـــې مــنـــورې نــــه شـم
زار دَ دغــــې در دَ هـــــر بشـــــر نــــه شـم
زار د دغـــــی در دَ هـــــر رهبـــــر نـــــه شـم
زار د دغـــــــی در دَ دروازې نـــــــــــه شـــم
زار دَ مــــديـــنـــې مــنـــورې نــــه شـم
زار د دغـــــې در بنـــائسـتـــۀ قـــرآن نـــه شـم
زار د دغــــې در هــــريـــو بيـــان نــــه شـم
زار د دغـــــې در لارې کــــوڅــــې نــــه شـم
زار دَ مــــديـــنـــې مــنـــورې نــــه شـم
زار دَ دغـــــې در دَ هـــــريـــو نُــــور نــــه شـم
زار د دغـــــې در دَ پـــاك حـضـــور ﷺ نــــه شـم

زار د دغـــې در هـــرې جـــنـــګـــلـــې نـــه شـم
زار دَ مـــديـــنـــې مـــنـــورې نـــــه شـــم
زار تـــريـــنـــه احـــمـــد زۀ دَ مـــردان شـــمـــه
زار تـــريـــنـــه دُنيـــا کښـــې پـــه هـــر اَن شـــمـــه
زار د دغـــــې در دَ تـــــذکـــــرې نـــــه شـــم
زار دَ مـــديـــنـــې مـــنـــورې نـــــه شـــم

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زار دَ مـــصـــطـــفـــیٰ ﷺ دَ هـــر ادا نـــه شـم
زار دَ مـــحـــمـــد بـــدالـــدجـــیٰ ﷺ نـــه شـم
زار دَ امـــــامـــــانـــــو دَ امـــــام نـــــه شـم
زار دَ مـــقـــتـــدا دَ خـــــاص وعـــــام نـــــه شـم
زار دَ مـــجـــتـــبـــیٰ شـــمـــس الـــضـــحـــیٰ ﷺ نـــه شـم
زار دَ مـــصـــطـــفـــیٰ ﷺ دَ هـــر ادا نـــه شـم
زار زۀ دَ ســـــاقـــــی خـــيـــر الابـــرار ﷺ نـــه شـم
زار دَ مُـــرســـلانـــو دَ تـــاجـــدار ﷺ نـــه شـم
زار دَ مـــحـــمـــد خـــيـــر الـــوریٰ ﷺ نـــه شـم
زار دَ مـــصـــطـــفـــیٰ ﷺ دَ هـــر ادا نـــه شـم
زار دَ پـــاك نبـــی ﷺ ښـــکـــلـــی کـــتـــاب نـــه شـم
زار دَ پـــاك نبـــی ﷺ دَ ټـــول اصـــحـــاب رضی نـــه شـم
زار دَ کـــائـــنـــات زۀ دَ خـــيـــر خـــوا نـــه شـم

زار دَ مصطفیٰ ﷺ دَ هر ادا نه شم
زار دَ پاك نبی ﷺ دَ هر قدم نه شم
زار زۀ دُ دُنیا دَ محترم نه شم
زار زۀ دَ خاتم الانبیاء ﷺ نه شم
زار دَ مصطفیٰ ﷺ دَ هر ادا نه شم
زار دَ دوجهان نه دَ رحمت شمه
زار دَ مصطفیٰ ﷺ نه هر ساعت شمه
زار دَ مجسَم دَ نُور رنړا نه شم
زار دَ مصطفیٰ ﷺ دَ هر ادا نه شم
زار تر رینه احمد زۀ دَ دُنیا شمه
زار تر رینه هر وختي په هر خوا شمه
زار دَ مزمل ﷺ نه دَ طٰهٰ ﷺ نه شم
زار دَ مصطفیٰ ﷺ دَ هر ادا نه شم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مقتدا چي دَ چا سیَد البشر ﷺ شی
رهنما نه دَ دُنیا دَ بحر و بر شی
چي روان په طریقه دَ محمد ﷺ شي
په دُنیا او په آخر به بختور شی
چي ژوندون کښي ئي رڼا دَ سنت راشی
دَ هر در دَ پاره نُور به دَ سحر شی

چـې پـابـنـد دَ شـريـعـت دَ مـحـمـد ﷺ شـی
بهتـريـن بـه دَ دُنيـا پـه لـر او بـر شـی
پـه قـدم بـانـدې قـدم چـې دَ نبـی ﷺ ږدی
رهبـرانـو لـره دلتـه بـه رهبـر شـی
چـې قـدم خـوك دَ نبـی ﷺ پـه قـدم كيـږدی
اے احـمـده! عـزتـمـنـده بـه بهتـر شـی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ډيـر پـه دې دُنيا كښې اے مـحبوبه! ﷺ عاشقان لرے
تـورې تـورې زلـفـې دَ وَالَّيْـل پـه دې قـرآن لـرے
تورې تورې زلـفـې ښـكلے ښـكلے پـه هـر در لـرے
تـورې تـورې زلـفـې دَ دُنيـا ښـهٔ مـعـطَـر لـرے
تـورې تـورې زلـفـې پـه دُنيا كښې عـاليشان لـرے
ډيـر پـه دې دُنيا كښې اے مـحبوبه! ﷺ عاشقان لرے
ښـكلے ښـائستـهٔ مـخ دے دَ دُنيـا دَ هـر بشـر نـه دے
ښـكلے ښـائستـهٔ مـخ دے دَ دُنيـا دَ هـر سحر نـه دے
مـخ ښـكـلے ښـائستـهٔ لك دَ ګـل دَ ګلستان لـرے
ډيـر پـه دې دُنيا كښې اے مـحبوبه! ﷺ عاشقان لرے
ښـكـلے پـه دُنيـا كښـې دَ دُنيـا دَ در قـدم لـرے
ښكلے هـر صـفـت هـم پـه عـرب او پـه عجم لـرے
ښـكـلے هـر صـفـت د دې دُنيـا پـه دې قـرآن لـرے

ډیر په دې دُنیا کښې اے محبوبه ! ﷺ عاشقان لرے

ښکلے هر صفت لرے دُنیا کښې د دُنیا دَ در

نُور دَ عظمت لرے دُنیا کښې دَ دُنیا دَ در

ښکلے په دُنیا کښې دَ دُنیا دَ در مکان لرے

ډیر په دې دُنیا کښې اے محبوبه ! ﷺ عاشقان لرے

ښکلے په یارانو کښې بلالؓ سره صدیقؓ لرے

ښکلے دَ دُنیا د در دُنیا کښې دا رفیق لرے

ښکلے په یارانو کښې عمرؓ لرے عثمانؓ لرے

ډیر په دې دُنیا کښې اے محبوبه ! ﷺ عاشقان لرے

ښکلے په یارانو کښې حضرت علیؓ حیدر لرے

ښکلے هر یو یار دلته دَ هر چا نه بهتر لرے

ښکلے په یارانو کښې اصحابوؓ کښې حسانؓ لرے

ډیر په دې دُنیا کښې اے محبوبه ! ﷺ عاشقان لرے

ښکلے یو یار لرے دَ ګل پشان ښائسته ښکلے

ښکلے هر ګفتار لرے دَ ګل پشان ښائسته ښکلے

ستورې دَ دُنیا دې دغه ستورې دَ اسمان لرے

ډیر په دې دُنیا کښې اے محبوبه ! ﷺ عاشقان لرے

ښکلے په دُنیا کښې دَ دُنیا تول شریعت دے ستا

وائي احمد وائي نور دے نور هر عبادت ستا

ښکلے هر ادا لرے او ښکلے هر بیان لرے

ډیر په دې دُنیا کښې اے محبوبه ! ﷺ عاشقان لرے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

عمل اُوکړه په سنت
دا دے نُور دَ شریعت
دا فلاح ده دَ جهان
دا دے سیورے دَ رحمت
دا دے حُسن دَ انسان
دَ انسان دے دا عظمت
دا دے نُور دَ کُل جهان
نُور دے نُور دَ عبادت
دا رضا دَ محمد ﷺ
دا سبب دَ شفاعت
دَ کوثر دَ ښکلی جام
دا سبب دے هر ساعت
پوره وزن دَ میزان
دا کُنجی ده دَ جنت
دَ پل صراط ملګرے
بهترین دا عبادت
دا رضا دَ پاك نبی ﷺ
دَ هر درد مے هدایت

په کښې مينه ده پرته

ختموُی هر شرارت

احمده! خلاصه دا

شته په دے هر صفت

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چا چې محبوب دَ دوجهان وُليدهٔ

هغهٔ نبی آخرزمان ﷺ وُليدهٔ

حق ئې ليدل دی دَ دُنيا په در

نهٔ ده دهوکه ددې دُنيا دَ نظر

چاچې مطلوب دَ مسلمان وليدهٔ

هغهٔ نبی آخرزمان ﷺ وليدهٔ

حق ئې ليدل دی عقيده لرمه

دا عقيده په هر حصه لرمه

چا چې مطلوب دَ هر انسان وُليدهٔ

هغهٔ نبی آخرزمان ﷺ وليدهٔ

حق ئې ليدل دی دَ هر چا په خوب کښې

حق ئې ليدل دی دَ دُنيا په خوب کښې

احمده! نُور ئې دَ قرآن وليدهٔ

چاچې نبی آخرزمان ﷺ وليدهٔ

تاچې نبی آخرزمان ﷺ وليدهٔ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوک چې قرآن پیژني نُور دَ جهان پیژني
لار دَ جنت پیژني چې څوک چې رحمٰن پیژني
څوک چې نبي پیژني هر صحابیؓ پیژني
څوک چې ولیان پیژني نُو امامان پیژني
څوک چې فلاح پیژني روح دَارواح پیژني
څوک چې نیکي پیژني هغه احسان پیژني
څوک چې ذلت پیژني هغه عزت پیژني
څوک چې ګناه پیژني هغه نقصان پیژني
څوک چې وفا پیژني هغه جفا پیژني
څوک چې نقصان پیژني هغه شیطان پیژني
څوک چې لحد پیژني قول دَاحمد پیژني
حق دا بیان پیژني کار دَایمان پیژني

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نشته نشته په دولت کښې څهٔ سکون
نشته نشته په بدعت کښې څهٔ سکون
په قرآن او په سنت کښې سکون پروت دے
نشته نشته بغاوت کښې څهٔ سکون
په نیکی کښې سکون پروت دے دَ جهان
نشته نشته شرارت کښې څهٔ سکون

محبت کښې سکون پروت دَ ټول جهان دے
نشته نشته عداوت کښې څهٔ سکون
دَ اصلاح په هريو کار کښې سکون شته دے
نشته نشته شيطانت کښې څهٔ سکون
په سُستے کښې سکون نشته دَ بشر
نشته نشته په غفلت کښې څهٔ سکون
نشته نشته دَ شيطان په محبت کښې
دَ ابليس په محبت کښې څهٔ سکون
اے احمده! سکون نشته په تيارے کښې
نشته نشته ضلالت کښې څهٔ سکون

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

راشه راشه تلاوت کښې شته سکون
کار کښې هرځائے په سنت کښې شته سکون
بې دينې کښې سکون نشته په جهان
راشه راشه شريعت کښې شته سکون
په ګناه کښې سکون نشته په يو در
راشه هرځائے عبادت کښې شته سکون
نشته نشته دَ شيطان په اطاعت کښې
دَ نبی ﷺ په اطاعت کښې شته سکون
نشته نشته په کارونو دَ ذلت کښې

راشه راشه په عزت کښې شته سکون
نشته نشته دَدُنیا په عداوت کښې
راشه مینه محبت کښې شته سکون
اے احمد علي ! هر کار دَ سنت ښۀ دے
د دُنیا دغې دولت کښې شته سکون

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك چې په محبوب پسې ژړیږی نه
دغه عاشق نۀ دے چې کړیږی نه
مینه دَ رسول ﷺ دَ ایمان جزء کنم
یو عمل بغیر لدې قبلیږی نه
څوك چې دَ نبی ﷺ رضا پسے نۀ ځی
داسے انسان یو ځائے کامیابیږی نه
څوك چې دَ نبی ﷺ سنت ته سپك ګوری
داسے انسان یو ځائے خوشحالیږی نه
څوك چې دَ سنت سره كوی مینه
داسے انسان ځی بره اُدریږی نه
څوك چې په اسلام پسې خندا كوی
اے احمده ! دین ورسره نشته دے
څوك چې دَ رسول الله ﷺ شرمیږی نه

★★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زړۀ مې دَيار کلى نه صبرېږى نه
زړۀ دے دا په بل ځۀ قلارېږى نه
ياد چې ورته کور دَ محمد ﷺ شولو
اُوس په منتونو منع کيږى نه
ياد چې ورته نُور دَ محمد ﷺ شولو
اُوس دا په بل يو څيز خوشحالېږى نه
ياد چې ورته دوست دَ ربَ اکبر شولو
اُوس ئې په بل ځائے کښې علاج کيږى نه
ياد چې ورته خاتم الرُّسل ﷺ شولو
اُوس په بل يو څيز باندې مړېږى نه
ياد چې ورته سيّدالورىٰ ﷺ شولو
اے احمده ! څکه ايسارېږى نه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مينے محبت ته څوك رسيږى نه
بې له محمده ﷺ ملاوېږى نه
څوك چې مينه زړۀ کښې دَ نبى ﷺ لرى
هغۀ زړۀ بل چا پسے کړېږى نه
څوك چې مُرسلان دې دُنيا منى
بې له محمد ﷺ ترې هار جوړېږى نه

څوك چې كلمه وائي او الله مني
دا توحيد بغير نبي ﷺ قبليږي نه
څوك چې په نبي ﷺ باندې ايمان لري
دا بې له اصحابو ؓ پوره كيږي نه
څوك چې دَ نبي ﷺ دَ لار نه لري دي
دوي دي تول راندۀ ورته ښكاريږي نه
اے احمده ! لاره دَ نبي ﷺ ښۀ ده
څوك چې تر ينه لرې دي پوهيږي نه

★★★★★

تمت بحمد الله تعالىٰ وبتوفيقه
ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم وتب علينا انك
انت التواب الرحيم وصلى الله تعالىٰ علىٰ خير خلقه
محمد وآله واصحابه اجمعين ومن تبعهم باحسان
الىٰ يوم الدين..........................................

## دَ مولانا احمدعلی مردانی نُور چهاپ شوی کتابونه

★ **معدن البیان فی ترجمة القرآن**

دَقرآن کریم دَبعضو سورتونو پښتومنظومه ترجمه

★ **قواعد النحو**

(دَعلم النحو ټول قواعد په پښتو نظم کښې)

★ **گلدسته دَ تجوید**

(دَعلم التجوید ټول قواعد په پښتو نظم کښې)

★ **گلدسته دَ اُصول حدیث**

(دَاُصول حدیث تذکره په پښتو اشعارو کښې)

★ **لُبُّ اللباب یعنی خاصیات ابواب**

(خاصیات ابواب په پښتو شعرونو کښې)

★ **دَ مونځ تعلیم**

(دَمونځ ټول مسائل په پښتو شعرونو کښې)

★ رڼا دَ سحر (صدارتی ایوارډ یافته)

(پښتو نعتونه)

★ ښکلا دَ چمن

(پښتو نعتونه)

★ سیرت عشره مبشرةؓ (اُردو)

★ سیرت ائمه اربعةؒ (اُردو)

★ انمول موتی (اُردو)

ناشر

مکتبه عشره مبشرةؓ غزنی سټریټ لاهور



دَ هریو مشهور نعت خوان انتخاب

# دَزړهٔ سکون

نوی او خواږه نعتونه





لیکونکے

## احمدعلی مردانی

صدارتی ایوارډیافته

خورونکے

## اسلامی ادبی تولنه

یونیورستی روډ مردان 0312-9818511

دَزړهٔ سکون
نوی او خواږه نعتونه
لیکونکے
احمدعلی مردانی